# جنگ او زمونږ نړۍ

## جان کیگن

او

## دوه ورې لیکنې د مایکل هاورډ

ژباړه، پېلامه او مالوماتي یادښتونه

د محمد حسن کاکړ



بسم الله الرحمن الرحيم

## ځانګړني:


د کتاب نوم: جنګ او زموږ نړۍ

لیکوال: جان کیګن او دوه ورې لیکنې د مایکل هاورډ




ژباړونکی: محمد حسن کاکړ

خپرندوی: کاکړ تاریخي علمي بنسټ

د خپرونو لړ: (۳)

کمپوز: احمد روئین کاکړ

چاپ شمیر: ۱۵۰۰

د چاپ ځای: سهر مطبعه

د چاپ کال: ۲۰۱۵/۱۳۹۴

# دخپرندویې ټولنې یادښت

د «کاکړ- تاریخي بنسټ» دخپلي خپرنیزې تګلارې له مخې او دخپلو امکاناتو په حدودوکې دتاریخي آثارو او دتاریخ مرستندویه آثارو د خپراوي تکل کړی دی. په دې لړکې د پوهاند محمدحسن کاکړ مهم تاریخي اثر «دافغان-شوروي جګړه» د لومړني خپرني ګام په توګه ، چاپ او خپور کړ.

دادی په همدې لړکې د «جنګ او زمونږ نړۍ» په نوم یو بل ارزښتناک تاریخي اثر ستاسو ترګوتو در رسیږي . ددغه اثر لیکوال جان کیګن دی او ورسره په دې اړه دمایکل هاورډ دوه لیکنې هم ملې دي . دغه اثر له انګریزي ژبې د هېواد نومیالي مورخ او څېړونکي پوهاند ډاکتر محمدحسن کاکړ ژباړلی دی .

په دې اثر کې دجنګ په اړه په څو سرلیکونوکې دقیقې لیکنې او څېړنې راغلي او د پخوانیو او اوسنیو جګړو په اړه یې مهم مطالب په خپلو پاڼوکې رانغاړلي دي .

ددې اثر چاپ دافغانانو لپاره له څو اړخونو څخه مهم دی :

لومړۍ خبره داده چې زمونږ ټولنه د اوږدو کلونو جنګ ځپلې ده او دادی اوس یې هم ځپي . مونږ له بل هرچا څخه زیات دجنګ په پایلو او غمیزو ښه خبریو او له همدې کبله مونږ ته

مهمه ده چې دجنګ په اړه او د بدمرغیو په اړه یې ځان ښه خبرکړو .

له بلې خوا زموږ ځوان نسل چې په حقیقت کې په پرله پسې توګه په جګړو کې زیږېدلي او په جګړوکې راغټېږي ، لازمه ده په تاریخي لحاظ هم دجنګ په پیل او عواقبو ښه خبرشي او تري کرکه وکړي . ددې کتاب ارزښت په همدې کې دی چې دټولو لویو او وړو جګړو د بدمرغیو دقیق او انسان پال تحلیل یې کړی دی .

« کاکړ- تاریخي بنسټ» په دې ویاړي چې داسې مهم اثر خپلو هېوادوالو ته وړاندې کوي او ورسره له خپل قدرمن استاد پوهاند کاکړ څخه مننه کوي چې دلیکنو له زیات مصروفیت سره سره یې د داسې ژباړې لپاره هم وخت وموند.

کاکړ- تاریخي بنسټ

دعلمي بورډ سکرتریت

کابل ، د ۱۳۹۴ ل . دحمل ۱۷

د ۲۰۱۵ . داپریل شپږمه

# لړلیک

سرلیک مخ

## د ژباړونکي پېلامه

دا به لومړی ځل وي، چې د جنګ په اړه لیکنې، هغه هم چې د دوه نامتو تاریخپوهانو وي،له انګریزي څخه پښتو شوې دي. د عمومي حکمونو او ویناوو په بنه دغه لیکنې د تاریخي پېښو پر بنسټ ولاړې دي، نه د خاصو نظریوپربنسټ، چې دقیق توب او سم توب یې یقیني نه وي، خو په هغه حال کې چې تاریخي پېښو تایید کړې وي.

جنګ انسان او ټولنه هر چیرې او هر وخت زیانمنه کړې، دغومره ډېره چې فیلسوف جان ستوارت مل وایي چې ((هیڅ څیز د جنګ د ورانۍ جبران کولی نه شي)). لرغونو یونانیانوویل چې ((جنګ بد دی په دې چې هغه نورهم بد خلک زېږوي، نظر دېته چې له منځ نه یې وړي.))

انسانان له انسانانو سره جنګ کوي او د جنګ پایلې د انسانانو له شمېر او جنګي وسیلو سره نېغ  تړاو لري. په اوسنۍ نړۍ کې چې خلک خورا ډېر شوي، هېوادونه ډېر شوي، ملي دولتونه ډېر شوي او ورسره ډول ډول وسلې د اټومي او هایدروجني بمونو په ګډون ډېرې شوې دي، جنګونه بیخي ډېر تباه کوونکي شوي دي. په هستوي وسلو سره اوس ممکن شوې، چې مدنیت یا مدنیتونه له

منځ نه یووړل شي او په خپله انسان ګردسره نابود شي او مځکه د لمریز نظام د نورو کرو په شان له ژوند نه خالي شي.

له همدې امله ده چې پوهانو، په تېره د لوېدیځې نړۍ پوهانو، د جنګ او دهغه په ټولو اړخونو لیکنې کړې، ددې لپاره چې خلک د جنګ له پایلونه ښه خبر وي او واکمنان په سیاست او ډیپلوماسۍ کې د هغو په نظر کې نیولو سره کشالې په خبرو سره هوارې کړي. په دغه حال کې دا د هر انسان وظیفه ده، چې د جنګ په مخنیوي کې په هره بڼه او اندازه چې وي برخه واخلي.

ددغو لیکنو لیکوالو، جان کیګن او مایکل هاورډ په لوړو تعلیمي موسسو کې ښوونې کړې او دجنګ په اړه یې په زیات شمېر اثار خپاره کړي دي. لومړنی یې د انګلستان د پاچایۍ اکاډمۍ سیند هرسټ[1] (Sandhurst) ښوونکی، په پرنسټن پوهنتون کې فېلو (Fellow) او د یاسر (Yasar) په پوهنځي کې د تاریخ استاد و. مایکل هاورډ چې پخوا د اکسفورډ په پوهنتون کې د تاریخ استاد و، اوس د امریکې د ییل (Yale) په پوهنتون کېدنظامي او سمندري تاریخ پروفیسر دی. دید ستراتیجیکي مطالعاتو لپاره د بین‌المللي موسسې مؤسس او دایمي سروال هم دی.

جان کیګن د جنګ په هغو اړخونو غږېدلی، چې هر څوک به وغواړي چې پرې پوه شي. ډېر مهم اړخ یې د جنګ سرچینه ده.ایا انسان په طبعي لحاظ یو جنګي موجود دی؟ څنګه چې انسانانو د تاریخ په اوږدو کې ډېر جنګونه کړي، د هغو له امله دغه فکر اوس عام دي، چې وایي جنګ د انسان طبعي میلان دی. حتی ایمانوویل کانت هم ویلي چې ((انسان له کاږه لرګي نه جوړ دی.)) یو بل

تاریخپوه جان هورګن وایي چې ((...جنګونه دغومره ډېر ډول ډول دي، چې د هغو په اړه تاسې د هر ډول تیورۍ د منلو یا ردولو لپاره شواهد میندلی شئ))[۱] خو دی دا هم وایي چې ((...موږ د جنګ لپاره انجنیري شوي نه یو. د وژونکې ډلې د تشددشواهد نه ملیون کاله د مخه ته، نه د هومو جینز (Homo Genes) هسکېدنې ته او نه سل ګونو زره کاله دمخه زموږ د انسان نوع هسکېدنې ته، بلکې دیارلس زره کلونه دمخه د تمدن له هسکېدلو نه زر وروسته ته رسېږي.))[۲] دی په دې اړه د ارکیالوجیکي شواهدو له مخې وایي چې دا دیارلس زره کاله د مخه ((د سوډان د جبل سهابا (Sahaba) په سیمه کې د نیل سین په غاړه کې د یوه قبر په ساحه کې و.))[۳]

که جنګ طبیعي میلان هم وګڼل شي، هغه به دغسې میل وي، چې ثابت او په یوه حال کې نه پاتې کېږي او تغیر به کوي، ځکه چې کاینات چې انسان یې یو ډېر کوچنی واحد دی، تل د تغیر په حال کې دی. کاینات (Universe) د لویې نړۍ (Macrocosm) او کوچنۍ نړۍ (Uicrocosm) په بڼه په تغیر کې دي. مځکه، چې انسان یې له پاسه ژوند کوي، د لویې نړۍ یو ستوری دی. مځکه او ورسره انسان د شیدو لارکهکشان (Milky Way galaxy) په منځ کې هره ورځ (مطلب ۲۴ ګړۍ) دوه ملیون میل حرکت کوي. دغه کهکشان په دغسې کاینات کې ګرزي چې سل ملیارده کهکشان او هرکهکشان یې سل ملیارده ستوري لري.کاینات هم یو نه بلکې ډېر او هر یو یې نا محدود او د پراختیا په حال کې دي.[۴] په کوچنۍ نړۍ کې تر ټولو کوچنی واحد یانې اټوم چې په سترګو نه لیدل کېږي او تر دې نزدې وخت پورې نه ټوټه کیدونکی ګڼل کېده، هسته یا مغز لري، چې له پروټون (Proton)، نیوټرون (Neutron) او

ایلکټرون (Electron) نه جوړ دی. هیڅ یو یې بُعد یا حجم نه لري او هر یو یې څپه او تل په حرکت کې دي(٥) ماده چې که د ښیښې، پولاد یا د مرمرو په بڼه هم وي، په نهایت کې د سکون په حال کې انرجي ده. د انسان طبیعت هم د همدغه قانون تابع دی، که څه هم دی په درک شوې نړۍ کې تر هر بل ژوندي موجود نه د ډېر لوړ استعداد یانې د عقل خاوند دی؛ خو طبیعت یا په دقیق توګه طبعي تمایل یې تغیر او تحول منونکی دی. په دې اړه د مولف جان سټوسنګر (John Stoessinger) د کتاب د یوې فقرې نقل دلته په ځای ښکاري.

((انسانانو دغسې دودونه پرې ایښي دي چې پخوا قطعي او نه پرېښودونکي ګڼل کېدل. د بېلګې په ډول د کنګل په دوره کې چې خلک په سمڅو کې اوسېدل له نزدې محرم سره ملاسته پوره د منلو وړ وه، په داسې حال کې چې اوس له محرم سره جنسي عمل نزدې په عالمي سویه مردود دی. انسان خوړل هم پوره یو بل مثال دی. زرګونه کاله دمخه انسانانو یوبل خوړل او د یوه بل وینې یې څښلې. دا هم د(انسان د طبیعت) برخه ګڼل کېدله. حتی یوه پېړۍ وړومبي په ملیونونو امریکایان په دې عقیده وو، چې خدای تعالی سپین پوستان مامور کړي چې آزاد او توران مریان وي....سره له دې هم مریي توب چې یو وخت (دانسان د طبیعت) برخه ګڼل کېدله، لغوه شو،ځکه چې انسانانو د ودې ظرفیت وښود. وده ورو وشوه،وروسته له ډېرو مصیبت ګاللو نه، خو هغه بیاهم وشوه. (دانسان طبیعت) تغیر کړی. د مري توب او د انسان خوړلو په شان به جنګ هم د انساني مصیبتونو له کارخانې نه حذف کېدلی وشي.))

((خو داسې ښکاري چې انسانان خپل ناوړې عادتونه له مصيبتونو نه وروسته ترک کوي. عقل يوازې بسيا نه کوي. مونږ پخوا له دې چې تغير وکړو بايد وخوځول شو، اونزدې ټوټه ټوټه شو.))[٦]

د لرغوني انسان په اړه پخوا له دې چې متمدن شي او کرنيز ژوند ته مخه وکړي او د کوم ډول نظم په چوکاټ کې ژوند وکړي، شواهد نه شته. د هغه د ژوند ياني د ښکاريتوب او پوونده توب ژوند په اړه چې هر څه ويل شوي دي شخصي نظريي اوتيوري ګانې دي، چې هغه هم سره ټکر کوي. د مثال په ډول انګليس فيلسوف تهاماس هابس (Thomas Hobbes ١٦٧٩-١٥٨٨) انسان د طبيعت په حال کې دغسې حيوان ښودلی چې له ټولو سره د جنګ په حال کې وي. دهغه په خلاف فرانسوي فيلسوف ژان ژاک روسو (Jean- Jacques Rousseau ١٧٧٨-١٧١٢) ويلي چې انسان په طبيعي حال کې جنګ نه پېژندده او دا مدني حالت و، چې دی يې مسخ کړ او جنګ ته يې وهڅوه. د هابز نظر چې جنګ د انسان طبيعي تمايل کېږي ډېرو پوهانو رد کړی. ډېره نوميالۍ منقده يې امريکايي انټروپولوجسته، مارګريټ ميید (Margaret Mead) ده چې وايي ((جنګ يوازې يوه اختراع ده، نه بيالوجيکي ضرورت.)) که جنګ يو طبيعي ضرورت وای انسان به هغه د نورو طبيعي ضرورتونو غوندې په منظم ډول کولای.

په لوېديځې نړۍ کې له دوهم نړۍ وال جنګ نه وروسته بين‌المللي جنګ نه ديشوی. د اروپايي اتحادېې غړو لا ژمنه کړې ده، چې خپلمنځي کشالې به په خبرو هواروي نه په جنګ سره. زمونږ په مهال کې جنګ ضد ذهنيت په خاص ډول په لوېديځې اروپا او په شمالي امريکا کې ښه پياوړی شوی دی. اروپايان

هغه خلک دي، چې دولتونو يې پخوا ((په ځايي خلکو يرغلونه کړي او اړ کړي يې دي چې ددفاع لپاره وجنګيږي.)) داسې هم ((اروپايانو دغو ځايي ټولنو ته جنګي تمرينونه او تکنالوجيکي ګانې...پېژندلې دي، چې په هغو سره هم له دوی او هم له يو بل سره وجنګېدل.))[۷] دا د هيلې اړ حرکت دی، چې د نولسمې پېړۍ متعرض استعماري او د شلمې پېړۍ د لويو جنګونو ملاتړ دغه ولسونه اوس د جنګ پرضد شوي دي. لا مهمه دا ده چې له جنګ نه په ټولو دورو کې د يوې وسيلې په توګه کار اخيستل شوی، د کوم ځانګړي مقصد لپاره نه، دا چې جنګ د جنګ په مقصد وي. البته انسان د جنګ استعداد لري؛ خو هغه د سولې استعداد هم لري. په دغه حال کې ويل کېدلی شي چې د وسيلو په اصلاح د ژوند په ښه کېدلو او د ولسواکي نظامونو په عام کېدلو او په خاص ډول د ژوند د ارزښت په پوهېدلو او قدر کولو سره د بين‌المللي جنګ د له منځ نه وړلو، يا لږترلږه د هغه د کمېدلو لپاره هيله کېدلی شي. انټروپولوجست جان ميولر (John Mueller) په دې فکر دی، چې د بين‌المللي ((...جنګ مخ په ځوړيتوب د جنګ په اړه زموږ د مخ په ډېرېدلو د مخالفت انعکاس دی.))[۸]

د جنګ او زموږ نړۍ بل بحث په دې اړه دی، چې وايي ((جنګ دولت رامنځ ته کړ او دولت جنګ کوي.)) ليکوال يې جان کيګن په دې نظر دی، چې دجنګ د رامنځته کولو عوامل چې هرڅه او هر څومره وو، جنګ کول يې ځانګړې دنده نه وه او د وخت په تېرېدلو سره دجنګ کولو وظيفې يې هم خپل درنښت له لاسه ورکړی. په تېره په لوېديځې نړۍ کې. په لوېديځې نړۍ کې اوس دغه ذهنيت پياوړی او عام دی، چې له دولت نه د ژوند ښه کېدل غواړي، نه د جنګ کول؛ مګر په دفاعي حال کې. په تاريخ کې هم داسې نه وه، چې

جنګ یوازې د دولت کار و. بې دولته جنګونه هم وو او پر دې برسېره دغسې دولتونه هم وو، لکه د مصر د فرعونانو چې د پېړیو پېړیو په بهیر کې یې هم نه یرغلیز اونه هم دفاعي جنګ کړی دی. په تاریخ کې بین‌المللي جنګونه هغه وخت ډېر شول، چې دولتونو لوی دایمي پوځونه لرل، په تېره د ناپلیون له وخت نه وروسته. کانت شاید اول څوک وي چې منظم پوځ یې د جنګ د عامل په ډول په دغه راز یاد کړ چې ((...هغه پر له پسې ډول نور دولتونه په جنګ سره ترټي په دغه واقعیت سره چې هغوی لا دمخه ورته تیاری نیولي وو.))[۹] د هیلې وړ علامه دا ده چې له دوهم نړۍ وال جنګ او د شوروي اتحاد له ټوټه کېدلو نه وروسته د دایمي پوځ د لږولو میلان حتی حرکت لیدل کېږي. اوس لا د بین‌المللي جنګ د پای ته رسېدلو خبرې هم کېږي، چې دا دهمدغه اثر وروستی او ډېر مهم بحث دی.

له جنګ نه مطلب یوازې بین‌المللي جنګ دی، خو په ټولو جنګونو کې یو ځیزګړ دی، چې هغه د فزیکي زور له لارې د یوې کشالې هوارول دي، نه دخبرو او منځګړیتوب له لارې. البته هغه وخت چې خبرې نتیجه ورنکړي، فزیکي زور ته لاس اچول کېږي. په تاریخ کې دولتونه په ډول ډول ډېر سره جنګېدلي دي. خو اوس نادولتي جنګونه هم لږ نه دي، په خاص ډول مخ په انکشاف هېوادونو کې. له همدې امله ده چې جان کیګن وایي چې ((جنګ یو استحالوي فعالیت دی.)) او ((جنګ د کوم ټولیز مقصد لپاره ټولیزه وژنه ده.)) ایادغسې وژنې به ختم کېدلی وشي؟ د انسان د تاریخ په لیدلو سره به دغې پوښتنې ته دهوځواب ویل کېدلی نه شي. پروفیسر هاوړډ لا یو څه بدلېدونکی ښکاري، چې وایي ((...که څه هم هڅونکې ده چې یقین وشي چې څنګه چې بین‌المللي بورژوا ټولنه

خپل نفوذ خپروي، يو نوی او باثبات نړۍوال نظم به ورو ورو رامنځ ته شي، موږ به هوښيار نه اوسو چې هيله وکړو دغسې يو څه بـه پـېښ شي.)) دی د ((بـورژوا ټولنـه زړه تنګـوونکې او پيکـه (Boring) ګڼـي او وايـي چـې ((نېشنلسـټي مبـارز غورځنګونـه يـا د توطيـه ګـرو افراطـي حرکتونـه د زړه تنګـۍ لپـاره ډېـرې ښـې مجراوي تهيه کوي، چې سره مرکبې شي د هغو له انجذاب نه دفـاع کېـدلی نـه شي)) يانې هغه د جنګونو لامل کېږي. دی بيا داسې نظر ښکاره کـوي چـې ((پـه پای کې لوېديځ د خپلو نښتو پيدا کولوته دوام ورکوي.))

جان کيګن هم نه وايي چې نړۍ به له بين‌المللي جنګ نـه پاکـه وي، خـو دی داهم وايي چې زموږ ((دکرې نظامي نقشـه، د هغـې نقشـې پـه پـر تلـه چـې کـه ددغې پېړۍ په اوله کې جوړه شوې وای لږ جنګ او ډېـره سـوله ښـيي.)) دی پـه دې فکر دی چې ((...د جنګ ډېره ناوړې خوا زموږ تر شا ده او دا چـې بشرـيت به په خپل ټينګ عزم او څارنې سره وکولی شي چې د نړۍ چارې په دغه ډول تر سره کړي چې جنګ ته به وار په وار لږ ځای پاتې وي.)) ددغسې حال د رامنځ ته کولو لپاره هيله وار په وار مخ په پياوړي کېدلو ده، چـې غـټ دليلونـه بـه يـې دا وي.

ډېر مهم يې دا دی چې جنګ په بشري، اقتصادي او نظامي لحاظ ډېـر ګـران تمامېږي او تېري کوونکي په جنګ سره خپـل مقصـد تـه هـم رسـېدلی نـه شي. ملتونه ولې جنګ کوي؟ ليکوال سټوسنګر په دې اړه مثالونه ورکوي.

((لومړۍ موضوع چې توجه جلبوي داده چې هيڅ ملت چـې پـه دغـې پېـړۍ (شلمې پېړۍ) کې يې چې لوی جنګ پيل کړ، فاتح ونه ووت. اسـتريا، هنګـري او

جرمني چې لومړۍ‌نړۍ وال جنګ یې وپاروه په بدنومۍ سره مات شول؛ د هټلر جرمني په بې شرط تسلیمۍ سره وځپل شو؛ د شمالي کوریا یرغل په ټولیز عمل سره شنډ او دهغې په بېرته تګ سره پای ته ورسېد؛ د ویټنام جنګ که څه هم د کمونستانو په ګټه ختم شو، خو دا به ډېره ساده ګي وي چې کمونستان یې په پیل کولو سره ګرم وګڼل شي؛ عربانو چې ۱۹۴۸ کې په نوي یهودي دولت یرغل وکړ، په څلورو پرله پسې جنګونو سره یې د اسرایلو په وړاندې سیمې له لاسه ورکړي؛ پاکستان چې غوښتل یې هند ته مخکې له مخکې جزا ورکړي، په بهیر کې یې په خپله دوه ټوټې شو او عراق چې ۱۹۸۱ کې یې په ایران یرغل وکړ، په دغې هیلې چې برى به په بیړه خپل کړي، نیمه لسیزه وروسته د سولېدنې په ډېر تاواني جنګ واوښت))، ((په ټولو حالاتو کې هغوی چې په جنګ یې پیل وکړ، ناکام شول. یرغلګر که پانګه وال، یا کمونستان، سپین یا ناسپین، لوېدیځ وال، یا نالوېدیځ وال، شتمن یا غریب وو، مات شول.))[10]

دغه لیکوال چې خپل اثرپه ۱۹۸۵ کې کښلی، په افغانستان باندې د شوروي اتحاد د یرغل پایله نه ده یاده کړې. شوروي اتحاد که څه هم د نړۍ یو زبر ځواک هېواد و، له افغانانو سره له څه باندې نهوکلونو وروسته ناکام مخ په شا تللو ته اړ شو. دغه مغلوبیت و، چې یې د امپراتورۍ د ټوټه کېدلو یو عامل شو.

د هیلې وړ بل ټکی دا دی چې لوېدیځ والو د شلمې پېړۍ له لویو جنګونو نه زده کړه وکړه، په دې ډول چې له لومړي نړۍ وال جنګ نه وروسته یې لومړی د ملتونو لیګ اوورپسې د نړۍ د ډېرو هېوادونو په ملګرتوب د ملګرو ملتونو موسسه جوړه کړه. وروستۍ له لومړني نه په څو اړخونو کې توپیر لري او تر اوسه یې د یرغلونو او جنګونو په شنډولو او دسولې په خوندي کولو او داسې هم

په اقتصادي او پوهنیزو ساحو کې مهم کارونه کړي دي.غړو یې ژمنه کړې چې د یرغلیز جنګ په وړاندې به دغې موسسې ته ځواکونه ورکوي. د موسسې غړي په خپل سر له جنګ کولو نه منع دي، خو دا چې د ځان په دفاع کې وي، یا ددغې موسسې له خوا تایید شوي وي. په دغو ژمنو او شرطونو سره د دوی نظامي خپلواکي محدوده شوې وه او په دغه حال کې اوس دغسې ذهنیت پیدا شوی، جي ښایي دولتونه خپل دایمي پوځونه لږ کړي، چې کانت هغه د جنګونو یو علت ګاڼه. په دې اړه د هستوي وسلو د استعمال تلفات، چې بیخي زیات دي، هم دولتونه محتاط کړي چې کشالې په خبرو سره هوارې کړي، نه د وسلو په استعمال سره. ستهوسنګر وایي چې ((نن ورځ [۱۹۸۵] پنځوس زره دغسې بمونه شته دي، چې شوروي اتحاد او امریکایې سره لري. ددغو بمونو د هرې یوې چاودنې قوت له هغه نه چې په هیروشیما کې استعمال شوې، سل کرته ډېر دی. د یوه ساینس پوه په حواله که کوم وخت ددغو بمونو لسمه استعمال شوه، نړۍ به د (هستوي ژمي) په غېږ کې ونیولی شي، چې د لمر د وړانګو مخه به اټومي وړانګې (راډیو اکټیف) ونیسي۔ ایکالوجیکي لړۍ به وشلېږي او ممکن انساني ژوند له منځ نه لاړ شي. په ۱۹۸۵ کې حتی د امریکې دفاع وزارت له دغه تخمین سره موافقه ښکاره کړه.)) ستهوسنګر زیاتوي چې ((په دې ډول حمله کوونکی هېواد به ځان وژلی وي، حتی بې له دې چې هغه ملت پرې حمله کړې وي، چې پرې یرغل شوی وي.)) دی په پای کې وایي چې ((نن ورځ د هستوي جنګ په حال کې د نړۍ هیڅ برخه به بې اثره پاتې نه وي. مځکه به په خپله بم شي او بم مځکه.))[11]

د هيلې وړ بل مهم ټکی د لوېديځې نړۍ په ولسونو کې د جنګ، وژنې او تشدد پر ضد د شعور او ويښتيا پياوړي کېدل دي. سټوسنګر لا وايي چې ((د عالمي شعور دغه نوې او ورو ورو پياوړې کېدونکې زړه سواندۍ کې زمونږ خورا غټه هيله پرته ده))[١٢] ددغه انکشاف غټ لاملونه د زورواکو نظامونو (فاشستي، کمونستي، نظامي، انحصاري) ناکامي او دډموکراسۍ نور هم عام کېدل، د پوهنې د ساحې پراخېدل او دعامه رسنيو تخنيکي وسيلو بيساري پراخېدل دي. دا مهال دموکراسي تر هر بل وخت نه ډېره عامه ده، دډموکراسۍ تمرين د خلکو له سولې سره تړاو لري، خو په نارسېدلو ولسونو کې د پروفيسر- هاوړډ په نظر هغه په کلپټوکراسۍ يانې دغلو او ټګمارو په واکمنۍ اوړي او بې نظمي او ګډوډي راولي، خو دغه نظام په هره سويه او ډول چې عملي کېږي، د بين‌المللي جنګ احتمال لږوي. مولف جان هوګن لا وايي چې ((د جنګ د مخ په ځوړيتوب تر ټولو ډېره عامه شرحه دډموکراسۍ عام کېدل دي.)) له دموکراسۍ نه مطلب د زورواکۍ او ارستوکراسۍ پرخلاف ولسواکي ده. په دموکراسۍ کې خلک د خپلو استازو له لارې حکومت کوي. ولسواکي په ولسمشري نظام کې په ښه ډول تمثيل کېدلی شي، ځکه چې حکومت يانې د دولتي نظام اجرايوي څانګه خپلو خلکو يا موکلينو ته مسووله وي، ديوه دغسې اساسي قانون پر بنسټ چې هغوی پکې رعيت نه، بلکې حقوقي افراد وي. کانت وايي چې په دغسې نظام کې ((...ډېره طبيعي ده چې دوی به ډېر متردد وي چې په دغسې ډېره خطرناک تشبث (يانې) جنګ پيل وکړي.)) نو دی وړاندې وايي چې له دغسې دموکراسي نظام نه ((د تل پاتې سولې هيله کېدلی شي.))[١٣] د کانت ولسمشري ډېرو دموکراسي بللې ده.لکه چې جان هورګن وايي چې ((کانت لومړی پوه و، چې دډموکراسۍ او سولې تر منځ يې د تړاو وړانديز وکړ.))[١۴]

دا هم د هيلې وړ نښه او د ستوسنګر په فکر د انسان د ودې علامه ده، چې زمونږ په مهال کې بين‌المللي کشالو د هوارولو لپاره له ډيپلوماسۍ يانې خبرونه ډېر کار اخيستل کېږي. خو ددغه تحول پياوړيتوب کار او زيار غواړي. د ډيپلوماسۍ د بري لپاره به هغه وخت لار هواره شوې وي، چې د شتمنو هېوادونو واکمنان کوښښ وکړي د مخ په انکشاف اوخپلو ټولنو تر منځ د ژوند په سطح کې توپير کم کړي. دوی دغه توان لري چې د ببرته پاتې هېوادونو کرنيز طرز او د غلې د توليداتو ظرفيت ډېر کړي. په دغه حال کې په نړۍ کې به په مليونونو انسانان د ولږې له حال نه ژغورل شوي، عدالت به يو څه خوندي شوی، د افراط او تفريط مخه به نيول شوې او دجنګ احتمال به لږ شوی وي. د امريکې پخواني ولسمشر جان کنيدي، له وژل کېدلونه دمخه دغسې پروګرام لاره. له بلې خوا د مخ په انکشاف هېوادونو لويانو ته ښايي د شتمنو هېوادونو واکمنان دغسې اساسي مرستېته و هڅوي که داسې ونه شي، لکه چې ستو سنګر وايي ((که د نړۍ غريب او وږی ونه شي کولی د نړۍ شتمن وهڅوي چې خپل شته په عادلانه ډول ورسره شريک کړي، تشدد به بيا وار په وار د مخ په ډېرېدو يوه حادثه وي.))(۱۵)

بل اساسي څيز چې دغه تحول پياوړی کولی شي، دعصري پوهنې او تکنالوجۍ نورهم عام کېدل دي. اوس دا يو عام فکر دی چې پوهه، پوهنه او تکنالوجي دوړاندې تګ او ښه ژوند لپاره حتمي شرطونه دي. خوله اوسنيو حيرانوونکو پرمختګونو سره سره بيا هم ډېر انسانان له عصري پوهنې نه بې برخې دي او د زړو فکرونو تر اثر لاندې فکر او عمل کوي. دغه حال د سولې له خوندي کېدلو د جنګ له مخنيوي د پرمختګ له کولو او په نهايت کې د ژوند

له ښه کېدلو سره مرسته نه کوي، پـه دغـه اساسي دليـل چـې دغسـې کسـان د بيزوګانو په شان مقلدوي. په دغسې حال کې دوی فکري وده کـولي نـه شي، پـه داسې حال کـې چـې فکـري وده داسـتعدادونو د انکشـاف لپـاره حتمـي وي. پـه دغسې انکشاف سره وي چې انسـان د پيـاوړي وجـدان خاونـد وي او قضـاوت او عمل د عقل او تدبير له مخې کوي او له تحول سره مقاومت نـه کـوي. لکـه چـې مقلدان يې کوي. مقلدان پرمختګ کولی نه شي او تل هغو ته اړ وي چې دغسـې انکشاف يې کړی وي؛ تحول مني او دتکامل پـه لـور درومـي. نـامتو اقتصـاد پـوه جان ګالبرت ويلي وو، چې هغه دغسې ټولنه ليدلې نه ده چې غړي يې باسـواد او په خپله بېرته پاتې وي. په همدغسې ټولنو کې وي چې د انسان ژوند ته ارزښت ورکول کېږي، تشدد او جنګ ته زړه نه کېږي او رسمي اعدام پکې هم منـع وي، ځنګـه چـې افـراد د ټـولنې بنسـټ جـوړوي، دهغـو وده او انکشـاف د ټـولنې د انکشاف او خلکو د نېکمرغۍ لامل کېږي. نو د افـرادو دغسـې انکشـاف حتمـي دی او د انکشاف اساسي لار دا ده چې په ټولنه کې لومړنۍ زده کړه عـومي او اجباري او دلوړې زده کړې موسسې ډېرې وي. نـن ورځ د بېرتـه پـاتې هېوادونـو حکومتونه هم کولی شي چې د شتمنو هېوادونو او بين‌المللي موسسو پـه مرسـته دغسې انکشافي کړنلارې پلي کړي؛ خو چې د سرکسان يـې د تنـور، لـوړ ايـډيال، تقوا او ټينګې ارادې خاوندان وي او له خلکو سره مينه ولري.

۲

په افغانسان کې د تاریخ په اوږدو کې دغومره ډېر جنګونه شوي، چې په بل هېواد کې به په دغه پیمانه نه وي شوي. افغانستان د جنګونو هېواد بلل کېدلی شي. د نړۍ نامتو قومندانان لکه سکندر، چنګېز خان، امیر تیمور او بابر دلته له خلکو سره جنګېدلي دي. سکندر چې له څو اړخونو نه په نړۍ کې یو بېجوړې قومندان دی په پخواني افغانستان کې دپښتون سپیټامنز (Spitamenes) په سروالي د ځایي خلکو له دغسې مقاومت سره مخ شوی، چې د هخامنشویانو په امپراتورۍ کې له دغسې ټینګ مقاومت سره مخ شوی نه و. سپټامنز په ګوریلایي تکتیکونو سره له سکندر سره تر دوه کلونو نه زیات وجنګېد. سکندر د کونړ په دره کې دهغه وخت اسپه سیانو یا اسواکا (Acvakas, Aspasians) یا د نن ورځ یوسف زیو له خوا هم له سخت مقاومت سره مخ شو. په دواړو سیمو کې هم د سکندر پوځ ډېر تلف شو او هم په خپله څو ځلې ټپي شو. د ځایي خلکو دغه زړورتیا او جنګي صفتونه به وو، چې په ځوان اسکندر یې دغسې اثر وکړ، چې هم په خپله هغه او هم د هغه  قومندانانو ورسره خپلوي او خېښي وکړه، که څه هم د افلاطون او ارسطو په ګډون یونانیانو غیر یونانیان بربر ګڼل، او مریي کول او وژل یې روا بلل. ټارن (Tarn) د لوی سکندر په نامه خپل کتاب کې وایي چې ((دا په خپله د سکندر فکر و، چې دغسې سطحې ته لوړشي، چې د افلاطون او ارسطو له سطحې نه لوړ و...))[۱۶] سکندر د یوه محلي حکمران اکسیارتز (Oxyartes) لور رخسانه (Roxane) و د سپټامنز لور اپامه (Apama) خپل قومندان سلوکوس نیکا تور ته واده کړه، د دوی زوی وروسته د لومړي انتیوکوس (Antiochus) په نامه پاچا شو او دیونان-باختري پاچایانو یوه پېړۍ

واکمني يې وکړه. سکندر هند ته د تګ په وخت کې دېرش زره محلي ځوانان چې يوناني روزنه يې ليدلي وه په خپل پوځ کې ونيول او په زرګونه ناروغ او نور يونانيان يې هلته پرېښودل. د هغه د دورې ژوندی يادګار د هغه نوم دی، چې اوس هم په افغانستان کې، په خاصه توګه په شمال، شرقي افغانستان کې عام دی.(۱۷)

د اتلسمې پېړۍ په پيل کې و، چې ميرويس نيکه کندهار د صفويانو له حاکميت نه په عالي تدبير او نظامي قدرت وژغوره او زوی يې شاه محمود هوتک ددغې امپراتورۍ مرکز اصفهان هم ونيوه. بيا د ستر احمد شاه په جنرالۍ او مشرۍ سره له آمو نه تر اباسين پورې ټول افغانستان د پرديو له حاکميت نه آزاد شو. کشمير، سند، پنجاب او داسې هم فارسي خراسان د هغه د امپراتورۍ برخې شوې. وروسته د اروپايي استعمار په دوره کې په داسې حال کې چې هم اسيايي اوهم د نورو لويو وچو هېوادونه د هغه د لاندې کېدلو تر خطر لاندې شول، افغانستان ته هم خطر پېښ شو؛ خو افغانستان په داسې حال کې چې له سدوزيو نه محمدزيو ته د حاکميت د انتقال په وخت کې د کورنيو جنګونو څخه نوی سر هسک کړی و او امير دوست محمد (محمدزی) په کابل کې واکمن شوی و، د برتانوي هند د پوځ له يرغل سره مخ شو، خو په دغه حال کې هم افغانانو په سخت مقاومت سره يرغلګر پوځ په شاتللو ته اړ او د کابل-ګندمک تر منځ لارې کې له منځ نه يو ووړ، چې دا د برتانيې د استعماري تاريخ يوه بيساري پېښه ده. خو په افغانانو کې چې تر دې دمخه د د باندنيو سياحانو په ليکنو کې په ټولې آسيا کې آزاد طبع او پراخ ذهن خلک ياد شوي دي، دلومړي ځل لپاره د نامسلمانو باندنيو په وړاندې چې په کافرانو يادېدل حساس

شول. دغه حساسیت څلوېښت کاله وروسته د برتانوي هند په بل ناکام یرغل سره نور هم پیاوړی شو. په ۱۸۹۳ کې په امیر عبدالرحمن باندې د برتانوي هند حکومت له خوا د ډیورنډ د توافق لیک تحمیل او له هغه وروسته نزدې هر کال په ختیځو پښتني سیمو کې د برتانوي –هند د یرغلګر پوځ پروړاندې د غزا په نامه جنګېدل دغه حساسیت په تلپاتې دښمنۍ بدل کړ، چې له امله یې په افغانانو کې د کافرکلمه عامه شوه. دغه ټینګې غزا ګانې د هغو وسلو په زور هم وې چې امیرعبدالرحمن ددغو سیمو لویانوته وړیا ورکړې او ځوانان یې دهغو په سیمو کې په خپلو افسرانو سره روزلي وو. دی لومړي افغان واکمن و چې دغه کار یې په پراخه اندازه په خاص ډول د هېواد په ختیځو سیمو کې کړی، سره له دې چې دی د برتانوي هند حکومت دوست و او باندینۍ چارې یې هم د هغو له خواترسره کېدلې. په دغه لړ کې دوزیرستان د میرزاعلي خان، چې د ایپي فقیر په نامه یادېده، غزاګانې ان له هند نه د انګریزانو تر وتلو (او هم له هغه وروسته د پاکستان پروړاندې) پورې په قوت کېدلې چې یو ځل یې د انګریزانو څلوېښت زریز پوځ هم په خپله وظیفه کې یانې د هغه په نیولو کې ناکام کړی و. برتانویانو په افغانستان کې په هیڅ جنګ کې په دغومره لوی پوځ یرغل نه دی کړی. دایپي فقیر د وزیرستان د یوه بل ستر قومندان میران شاه په شان و، چې په منځنیو پېړیو کې یې دهند پر وړاندې یې یرغلونه کول. ددغو ټولو جنګي مقابلو په نتیجه کې په خاص ډول په ختیځو پښتنو کې د غزا په نامه جنګي روحیه د دوی د کلتور دغسې یوه برخه شوه، چې په عامه شعور او ذهن کې یې ځای ونیوه. دغه شعور په کال ۱۹۷۹ کې په افغانستان باندې د شورویانو په پوځي یرغل سره نه یوازې نورهم ټینګ شو، داخلي اړخ یې هم پیدا کړ. د هغو خلقیانو او پرچمیانو پر وړاندې هم جهاد روا وبلل شو چې یرغلګرو په ملګرتوب

له مجاهدو سره جنګېدل. دوی هم شوروي شوی او ملحد وګڼل شول. الحاد د شورویانو رسمي دین و. پردې برسېره څنګه چې شورویانو د خپلې امپراتورۍ په هېوادونو کې کمونستي حکومتونه حاکم کړي وو، افغانان اندیښمن شول چې که دوی افغانستان هم لاندي کړ، په دوی باندې به هم کمونستي حکومت حاکم کړي او له دوی نه به شوروي ډوله بدل انسانان جوړ کړي. بیانو افغانانو د جهاد په نامه ددغه زبر ځواک د پوځ پروړاندې دغسې ټینګه وسله واله مقابله وکړه، چې شورویانو او افغان تواریشانو یې هیڅ فکر نه کاوه، ددغه ټینګ مقاومت له امله وو، چې زیاتره عربي او نزدې ټولو لوېدیځو هېوادونو په خاص ډول عربستان، امریکا او داسې هم پاکستان د وسلو پیسو او د ډیپلوماسۍ له لارې ددوی ننګه په ټینګه وکړه، تر څو د شوروي اتحادیو لویان مجبور شول له څه باندې نهو کلونو ناکام جنګ نه وروسته خپل پوځ له افغانستان څخه وباسي، په رسمي ډول د ملګرو ملتونو د موسسې د ځانګړي استازي په منځګړتوب د یوې فیصلې له مخې، خو په واقع کې د افغانانو د ټینګ مقاومت له امله. شورویان په خپل څه باندې اویا کلن تاریخ کې بل هیڅ وخت له لاندې کړي هېواد نه د خپل پوځ په ایستلو مجبور شوې نه وو.

د افغان- شوروي جنګ پایلې مهمې ثابتې شوې. ډېر مهم یې د برلیند دېوال نړېدل، د شوروي د امپراتورۍ او د ساړه جنګ له منځ نه تلل وو، چې له دوهم نړۍ وال جنګ نه وروسته یې په ټول جهان سوري غزولي وو. په دوهم نړۍ وال جنګ سره فاشزم وځپل شو او د افغان – شوروي جنګ نه وروسته کمونستي حکومتونه له منځ نه لاړل او کمونستي غورځنګ شنډ شو. په بله سطحه کې د اسلامي هېوادونو یو شمېر هغه رضا کاران وو، چې په افغانستان کې له بریالي

جهاد نه وروسته په خپلو هېوادونو کې يې زياتره د القاعدې د پروګرام له مخې وران کارۍ اوترهګرۍ پيل کړې. د عربستان اسامه بن لادن چې په افغان جهاد کې يې برخه لرله او په آخر کې يې د خيريه چارو د کولو لپاره د القاعدې تنظيم جوړ کړی و، د همدغسې ورانکارو له خوا په خپله د امريکې په ملکي الوتکو سره د نيويارک د سوداګرۍ ددنګو ماڼيو وهل وو چې شاو خوا درې زره کسان پکې ووژل شول او بيا امريکې د ترهګرۍ پروړاندې جنګ اعلام کړ، چې په ښکته درجه تر اوسه هم په نړۍ کې يو ځای بل ځای کېږي.

په افغانانو کې د شوروي- افغان جنګ پايلې تر اوسه هم په ټينګه حس کېږي. د شوروي پوځ په وتلو او دکابل رجيم په نسکورېدلو سره جهاد بايد ختم او جنګ بس شوی وی؛ خو دغسې و نه شول. په دغه اوږده او ډېر خونړي جنګ کې، چې له يو مليون نه ډېر افغانان شهيد شول، د جنګ او جهاد فکرونه د جهاديانو په ذهنونو او زړو او د ځينو په نظر د هغو په لا شعور کې ځای ونيوه. څنګه چې د اسلامي تنظيمونو مجاهدانو جنګ ګټلی و، سرانو يې فکر کاوه چې ددولتي واکمنۍ حق دوی خپل کړی دی او څنګه چې د همدغه جهاد له برکته دوی د افغانانو په نامه دډېرو عصري وسلو، د مليونو ډالرو، د غټ اعتبار او د بيساري قدرت خاوندان شوی وو، دوی فکر کاوه چې په هر ډول چې وي واکمني ترلاسه کولی شي. د يوه افراطي تنظيم مشر لا برالا کړې وه، چې له دې وروسته په افغانستان کې له مجاهدو نه پرته بل څوک حکومت کولی نه شي. په رښتيا هم په دغه وخت کې دوی د منظم تنظيمي قدرت خاوندان او هم د خلکو له اعتماد او اعتبار نه بهرمن شوي وو. پخواني پاچا محمد ظاهر په ولسي اعتبار

کې تردوی ټولو د مخه و، خو هغه نه منظم قدرت او نه دبیا واکمن کېدلو شوق لاره.

دا تنظیمي لویانو ته د تاریخي آزموینې وخت و، خو دوی په دغې آزموینې کې په مطلق ډول ناکام شول اوله دوی نه یو هم تر پایه پورې ملي مشر نه شو. دوی یو هم په دې فکر نه شول، چې د حالاتو په اوښتون سره د جهاد او جنګ ضرورت له مینځ نه تللی، د وران شوی ملک  د بیا ودانولو او د ملي سیاست کولو وخت رسېدلی دی او دا د افغانانو حق دی چې د خپلو دودونو او د لویې جرګې له لارې اول موقتي حکومت او بیا د قانون او انتخاباتو  له لارې منظم ملي حکومت جوړ کړي؛ خو د افراطي تنظیمونو مشرانو یوازې تنظیم واکي غوښتله. بیا نو دوی او د ټولو تنظیمونو د سر کسانو د پاکستان صدراعظم نواز شریف د تجویز له مخې د تنظیمي انحصاري حکومت فارمول ومانه او دایې له یاده وایستله چې د خلقیانو او پرچمیانو انحصاري رجیمونه په مطلق ډول ناکام شوی وو، په عوض یې دوی دغسې فارمول ومانه چې د هغه له مخې واکمني به د لنډې مودې لپاره ددوه لړکیونه جوړ تنظیمونو په سروالي جوړېږي، چې په دغه حال کې په قوي احتمال دغه مقام غوښتونکي او په دولتي  چارو کې بې تجربې او سر زوري کسان به سره جنګېږي او په دغو جنګونو کې به یې ټولې کړې عصري وسلې له مینځ نه تللې او افغانستان به بیا هم پاکستان ته محتاج وي. همدغسې هم وشول.

په تنظیم واکۍ کې د شلمې پېړۍ افغانستان د طبیعت او ګډوډۍ حال ته لاړ، امنیت معدوم شو او جنګونه په وړو او لویو ښو ډېر وشول. د کابل ښار چې د اشغال په دوره کې لوی شوی او مامون و، بیساري صدمه ولیدله او په ټول

ملک کې د سر، مال او ناموس خونديتوب له مينځ نه لاړ. په دغې دورې (۱۹۹۶-۱۹۹۲) کې ابادي هيڅ ونه شوه. د اشغال په دوره کې چې اطرافي سيمې ډېرې وراني شوې وې او په مليونو افغانان ايران او پاکستان ته کډوال شوي وو، په تنظيم واکۍ کې ښارونه ډېر زيانمن شول. ايران، پاکستان او تر څه حده ازبکستان په دغه نا ارام حال کې په افغانستان خپلې خاصې ډلې پياوړې کولې او په دې ډول يې په افغانستان کې يو ډول نيابتي جګړه کوله او دافغانستان په بې امنه کولو او ورانولو کې يې برخه اخيستله ولس عاجز او د معجزې په تمه و، تر څو د جوماتونو ملايان او طالبان د تنظيم واکۍ پرضد جګ شول اوله يو لړ نښتو او جنګونو نه وروسته يې په ۱۹۹۶ کې دغه دوره چې دوی (د شر اوفساد دوره بلله) ختمه کړه. خو ددغه نوي اسلامي امارت لويانو هم له پېښو او د تېرو شويو رجيمونو له تېروتنو نه زده کړه ونکړه او ډېرې تېروتنې يې وکړې. واکمني يې يوازې خپلې ډلې ته ځانګړې کړه، په داسې حال کې چې غړي يې له قدري، کنز، خلاصې او قران مجيد نه اخوا په نور څه نپوهېدل او په اداري او حکومتي چارو کې يې هيڅ تجربه نه لرله. بيانو دوی د اسلامي شريعت په تطبيق کې د وهابيانو په تقليد زيږ چلند غوره کړ. په نتيجه کې د دوی اسلامي امارت له تنظيم واکۍ نه لا ډېر انحصاري، لا ډېر سخت نيونکی او لا ډېر ځپونکی شو او طالبانو يې د ضربېغونډ غړو په شان نارينه وهل په دې نامه چې ياېې ږيرې لنډې دي، يا يې لمونځ نه دی کړی او ښځې يې وهلې چې اسلامي ستر نه مراعاتوي، يا له کور نه دباندې بې له محرم نه ګرزي. خلک نور هم بې وزلې او مړاوي شول؛ ملي اقتصاد په ټپه ودرېد؛ وزګارتيا نوره هم ډېره شوه. په تېره وروسته له هغه چې اول امريکا او ورپسې د ملګرو ملتونو موسسې د بشري حقونو د سرغړونې په نامه په امارت باندې بنديزونه ولګول. سره له دې هم

امنیت نزدې په ټول ملک کې خوندي و او بدکارو او غلو ته د مرګ په ګډون جزا ورکول کېدله. خو دوی ځینې سرکونه هم پاخه او هوار کړل او د کندهار خلکوته یې د یوه توربین په درولو سره برېښنا تهیه کړه. خو د امارت په ټوله دوره کې هم وژنې او جنګونه په وقفو سره کېدل. امارت پاکستان ته محتاج او تر نفوذ لاندې یې و، په داسې حال کې چې ایران د امارت مخالفان لمسول او وسله وال کول؛ خو دا امریکا وه چې ۲۰۰۱ کال په اکتوبر کې یې د ملګرو ملتونو د یوې پرېکړې له مخې امارت وروسته له هغه په نظامي قوت نسکور کړ، چې لویانو یې د اسامه بن لادن له بیرون کولو نه ډډه وکړه، چې په افغانستان کې ددوی تر سیوري لاندې اوسېده او هغه د نیویارک د پېښې نوښتګر ګڼل شوی و.

له یوې لنډې مودې نه وروسته په افغانستان کې اول یو منځمهال حکومت او بیا د نوي اساسي قانون له مخې په سراسري ټولټاکنو سره د یوه لبرل دموکرات ولسمشري نظام په پښو ودرول شو. په دغه نظام کې له پنځه ویشت کلونو سکون نه وروسته د دموکراسۍ یوه نوې دوره پیل شوه؛ خو هغې دغسې اړخونه هم لرل چې د افغانستان په تاریخ کې یې ساری نه درلود، ډېر مهم اړخ یې دا و چې د ملګرو ملتونو تر چتر لاندې د ناټو په مشرۍ د شپږویشتو هېوادونو لوی واړه پوځي واحدونه په افغانستان کې ځای پر ځای شول. د هغو ډېره غټه برخه امریکایي پوځ و. د دغو ټولو پوځونو مقصد داو، چې افغان دولت نور نو ناکام نه وي او په ټول وطن حاکم وي او د ترهګرۍ ځالې د تل لپاره له مینځ نه وړل شوې وي. د ترهګرو د ځپلو بار په ډېره اندازه د امریکایي او برتانوي پوځونو په غاړه و. خو ددغو پوځونو او داسې هم د کابل حکومت

پروړاندې په خاص ډول له ۲۰۰٦ نه وروسته د طالبانو او ملګرو ډلوله خوا ګوریلايې ډوله بریدونو شدت وموند.

افغان طالبانو زیاتره له کوټې نه او نور سر سخت ملګري يې د القاعدې غړو په ګډون چې ډېر يې له ازبکستان څخه وو، له سهیلي او شمالي وزیرستان نه دننه په افغانستان کې نه یوازې په باندنیو، بلکې په حکومتي چارواکو حتی د پوهنې په منسوبانو مرګکي بریدونه کول او په سرکونو او لارو کې يې ورته بمونه خښول، په دې نامه چې حکومت د باندنیو لاسپوڅی دی او بهرنیان کاپران، ددین دښمنان او جهاد يې په وړاندې روا دی. په لومړیو کالونو کې چې دطالبانو زورواکي تازه وه او خلکو نوي حکومت او باندنیو ته د ژغورونکو په سترګه کتل او په دې تمه وو چې وطن به د نړۍ د یوازني زبر ځواک او شتمنې امریکا په راتګ سره اباد او ارام او دوی به د ښه او آزاد ژوند خاوندان شي، دغه ډول تبلیغ او وران کاري د یوې لنډې تېرېدونکې حادثې په شان ګڼل کېده خو دغه هیله ورو ورو په نا هیلۍ بدله شوه، په دې چې حکومتي فساد او بې عدالتي په ټول وطن کې خپره شوه او د قانون حکومت خوب او خیال شواو دافغان دغه نوې دموکراسي د عمل په ډګر کې د مایکل هاوړډ په ژبه کلپتو کراسي یانې د غلو او ټګمارو واکمني شوه او اداري فساد په حیرانوونکي ډول په دغه ډول عام شو چې په افغانستان کې بل هیڅ وخت دغومره عام نه و. په عین حال کې د حکومت د لبرل سیاست په اثر او په وطن کې د بیخي ډېرو باندنیو په شتون سره قیمتي له حد نه ډېره شوه. په نتیجه کې ولسي نارضایت عام او حکومت خلکوته بېګانه او نامشروع شو. داسې هم د ورانکارو طالبانو او باندنیو ترهګرو پر وړاندې د باندنیو او افغان پوځونو د ځمکې او هوایي ځواکي

عملیاتو په ترڅ کې د اړخیزو ملکي تلفاتو او د باندنیو سرتېرو له خوا په خپل سر د کورونو او حتی د ښځو لټولو له امله نارضایت نورهم ډېر او ټینګ شو، که څه هم په وطن کې د ودانولو وړې نوې پروژې پلي کېدلې او د روغتیا او پوهنې په برخو کې پرمختګونه کېدل. د همدغې نیمګړې دموکراسۍ او دغیر حکومتي ازادو تلویزونونو، رادیوګانو، ورځپاڼواو نورو خپرونو په بیساري ډېرېدلو او فعال کېدلو او د متشبثانو، پانګه والو او باندنیو په هڅونو او مرستو سره په افغانستان کې د اوږدې مودې له سکون نه وروسته یو ډینامیک غورځنګ پیل او مخ په قوت شوی دی.

د امریکا په مرسته او دستور افغان امنیتي او پوځي ځواکونه په دغومره ډېر شمېر تنظیم او وسله وال شول چې بل هیڅ وخت په دغه شمېر نه وو شوي. د امریکا او ناټو پوځونه د همدغه کال ۲۰۱۴ تر پایه پورې له افغانستان څخه وځي، بې له دې چې اصلي مقصد ته رسېدلي او ترهګري یې له مینځ نه وړې وي. په یوه حساب دوی له دیارلس کلونو جنګ نه وروسته له افغانستان نه ناکام وځي، لږو ډېرهغسې چې د شوروي پوځ هم بې له دې چې اصلي مقصد ته رسېدلی وي، له افغانستان نه ووت. خو دوی په داسې حال کې چې په خپله خوښه وځي، لوی افغان پوځ شاته پرېږدي، غواړي د روزنې لپاره یې یوه وړه قوه پرېږدي او مالي مرستوته هم دوام ورکړي. په هر حال، د امریکې حکومت د یوه رسمي راپور له مخې یوازې امریکا د افغانستان په ودانولو کې یو سل او درې ملیارد ډالر لګولي څه باندې دوه زره سرتېري یې وژل شوي او څه کم شل زره یې ټپي شوي دي. (اټکل شل زره افغانان هم تلف شوي دي) خو د پولي مرستو څلوېښت سلنه یې د غیر حکومتي موسسو یا انجوګانو او قراردادیانو او د باندنیو چارواکو

له لارې بېرته ورل شوې پاتې غټ مقدار يې دننه په وطن کې په اداري فساد سره شخصي جېبونو ته تللی دی. که د يو سل او درې مليارد ډالرو نيمايي هم په افغانستان کې په ټول ګټو او توليدي پروژو لګېدلې وی، وران شوی افغانستان به ودان پرمختللی او د وګړو ژوند به ښه او ورانکاران به بې اثره او ارامي به خوندي وی. خو اوسنی حال دغسې نه دی او ډېر افغانان انديښمن دي چې د باندنيو پوځونو د وتلو سره به بې امنيتي ډېره شي لړو ډېر په هغه ډول چې د شوروي پوځ په وتلو سره امنيت له مينځ نه لاړ.

دا چې په دغې اوږدې مودې کې د بين‌المللي پوځونو په شتون او عمل سره د افغانستان وضع هغسې نه شوه، چې يې توقع کېدله ددوه اساسي علتونو له امله ده. يو داچې نوی حکومت د بون د موافقې له مخې دمصلحت په بنسټ جوړ شو نه دوړتيا د پرنسيب له مخې او زياتره لوړ دولتي مقامونه هغو ته ورکړل شول، چې په جرمونو تورن، خلکو ته نامنلي او حتی منفور وو. بل اساسي علت دادی چې د ناټو او د امريکې لوړ پوړو چارواکو ونه شو کولی ياونه غوښتل چې د پاکستان چارواکي وهڅوي يا مجبور کړي چې د هغو ورانکارو او ترهګرو مخه ونيسي چې له هغه ملک نه يې په افغانستان کې ورانکاري او شريکي عمليات کول، که څه هم امريکا د پاکستان د همکارۍ دجلب لپاره په ملياردونو ډالره ورکړل د نا ارامۍ په حال کې د پاکستان له رښتينې همکارۍ نه پرته په افغانستان کې د ارامۍ خوندي کول که ناشونې نه وي، ډېره ګرانه به وي. خو پاکستان په دې اړه رښتيې همکاري ونه کړه.سره له دې هم ډېری فکر کوي چې د باندنيو پوځونو په وتلو سره به ارامي خوندي او جنګ به په هره بڼه چې

وي ختم شي. خو د موجودې وضعې او د نږدې تېرو پېښو په پام کې نیولو سره دغه فکر د خوښ لیدنې او حتی د ساده توب محصول ښکاري.

یو دا چې د شوري پوځ له وتلو وروسته همدا چې افغانستان نا ارام شو، پاکستان او ایران دواړو له نېغ نظامي یرغل نه پرته ډول ډول لاسوهنې وکړې او وضعه په پای کې دېته ورسېدله چې بین‌المللي پوځونه افغانستان ته ننوځي. دغه هېوادونه افغانستان ته خاصې اجنداګانې لري او د پلي کولو لپاره یې مناست وخت ته ګوري. مناسب وخت دوی ته هغه وخت دی، چې په افغانستان کې باندنی پوځ نه وي او وطن نا ارام او دولت بې اعتباره، افغانان بې اتفاق او ډلې ډلې وي. لا ډېره اساسي خبره داده چې د شوروي اتحاد له یرغل نه وروسته، نه دخلقي حکومت له پیل نه، په افغانستان کې دغومره ډېر جنګونه شوي دي، چې له امله یې افغان وژنه او حتی ځان وژنه او بل وژنه یو عادي څیز شوی دی، که څه هم د شته توب په ډګر کې د انسان ژوند تر هر بل څیز نه ډېر ارزښت لري. شاید وویل شي چې افراطي او ایډیالوجیکې ډلې، له هر ډول نه چې دي اوس په دې فکر شوې دي چې قدرت ته رسیدلوته له زور، جنګ، انقلاب، کودتا او د افغان وژنې نه کار اخیستل نه یوازې دوی ته بلکې نور او ټولنې ته نه جبران کېدونکی زیان اړوي او دا چې له دوی نه هغوی چې په افغانستان کې قدرت ته رسېدلي وو، په مطلق ډول ناکام شوي، خو له هغو پېښو نه چې په افغانستان، پاکستان او نورو اسلامي هېوادونو کې کېږي ښکاري چې ځینې مذهبي ډلې په دغه فکر نه دي او لا هم حتی له انتحاري وژنو نه د وسیلې په توګه کار اخلي. د هاوړډ پوهنتون پخوانی استاد او د ترهګرۍ او د مهمو آثارو مولف پیټر برګن (Peter Bergen) وایي چې یوازې (( په ۲۰۰۹ کې په

پاکستان کې اوه اتیا انتحاري وژنې ثبت شوې، چې له امله یې دیارلس زره خلک وژل شوي. په داسې حال کې چې په افغانستان کې نزدې شپږزره ملکي افغانان وژل شوي یا ټپي شوي دي، چې دا د طالبانو له نسکورېدلو نه وروسته ډېر لوړ ثبت شوی عدد دی.))(۱۸)

دا چې ځان وژنه بل وژنه ولې او څنګه کېږي دغه پېښه به هغه یو څه روښانه کړي. د ۲۰۰۷ کال په جنورۍ کې د افغانستان په لوګر ولایت کې د پښتونخوا د بنو دوه ویشت کلن د وزو پوونده امداد الله چې یې ونه شو کولی په ځان پورې تړلی بم وچوي، ژوندی ونیول شواو په کابل کې بندي شو، خو هغه له دغه عمل نه پښېمان نه و. د تحقیق په وخت کې چې مولف برګن هم هلته و، ویې ویل چې ((زه خواشینی یم چې خدای تعالی اجازه رانکړه چې ځان قربان کړم)) هغه دا هم وویل چې غوښتل مې په انګریزانو، امریکایانو او نورو باندنیو باندې برید وکړم په دغه امید چې ((د یوه شهید په توګه دوه اویا وعده شوې حورې مې په نصیب شي.)) او چې وپوښتل شو چې که له بند نه آزاد شې بیا به هم دغه وژنې وکړې؟ هغه (البته هو) په دغه ډول وویل چې دا څه احمقه پوښتنه ده. برګن اضافه کوي چې په افغانستان کې ((تېر کال ۲۰۰۵ د انتحاري وژنو له هر لس قربانیونه اته یې ملکیان وو.)) (۱۹)

اوس به امداد الله او دهغه روزونکي د پاکستان د طالبانو تحریک قومندان اختر محمد او ددوی په شان نور څوک قانع کړي چې ترهګري هغه هم ځان وژنه بل وژنه د اسلام پرضد عمل دی او دقرآن مجید له مخې د ترهګر ځای به دوزخ وي د قرآن مجید دالنسآ سورت درې نوییم آیت ارشاد دی، چې ((وَمَنيَقْتُلْمُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللَّهُ

عَلَيْهِ وَلَعَنَهُۥ وَأَعَدَّ لَهُۥ عَذَابًا عَظِيمًا ﴿النساء: ٩٣﴾)) که څوک یو مومن په قصدي ډول ووژني تلپاتې ځای یې دوزخ دی او د خداي تعالی غضب به پرې باندې او لوي عذاب به ورته تیاروي.[٢٠]

دغسې کسان به څوک قانع کړي چې لوی امام ابوحنیفه (رح) په خپل فقه اکبر فتوا کې ویلي چې ((زما په نظر هیڅ څوک د هغې ګناه له امله چې یې کړې کافر نه دی او مونږ د هغه له عقیدې نه منکر نه یو.)) داسې هم دوی به څوک قانع کړي چې د جهاد د فتوا ورکول چې په واقع کې د جنګ اعلان دی یوازې د اولی الامر او د هغو دیني عالمانو صلاحیت دی چې په خلکو کې د اعتبار خاوندان وي، نه دبل چا. داسې هم دوی به څوک قانع کولی وشي چې هغه مسلمانان چې په ترهګرۍ او انتحاري وژنو سره وژل کېږي، د ژوند حق لري او یوازې هغه وخت له دغه حق نه محرومېدلي شي چې جرم یې کړی وي او عدلي محکمه یې مرګ روا وبولي. داسې هم دوی به څوک قانع کولی وشي چې انسان وژنه، هغه هم په ډېرشمېر او په پرله پسې ډول له خپل ځان خپلو وطنوالو او له بشریت سره دښمني او نه بښل کېدونکی جرم دی. داسې هم دوی به څوک وپوهولی شي چې په دغسې وژنواو هم په فرقوي وژنو سره چې په سوریه، عراق او پاکستان کې کېږي، خلک او ټولنې یې د ژوند له ګړندي تلونکي کاروان نه وروسته پاتې کېږي او هغو ته به لا ډېر اړ وي، چې دوی یې کافران ګڼي.

مصیبت دادی چې ددغه ډول وژنو مخنیوی ګران څه چې حتی ناشونی دی، که څه هم دا یو ډول جنګ دی. ددغسې جنګ مخنیوی په اصل کې په خپله د ټولنو او په خاص ډول د حکومتونو مسوولیت دی او هغه په دغه ډول شنه کولی شي چې په قانون او عدالت سره حکومت وکړي، امنیت خوندي

وساتي او خلکوته د سالم ژوند شرایط برابر کړي. خوله بده مرغه له دوهم نړۍ وال جنګ او په خاص ډول د شوروي امپراتورۍ له ټوټه کېدلونه وروسته دولتونه په تېره په بېرته پاتې هېوادونو کې په خپلو وظیفو کې پاتې راغلي او ټولنې یې بې ثباته او کړکیچنېشوې دي. دنړۍ لوی تاریخپوه ایرک هابسبام (Eric Hobsbawm) چې په لندن پوهنتون کې استاد و او مایې ډېر لیکچرونه اورېدلي وایي چې ((نن د حکومتونو پوره وسله وال ځواک په دې نه دی توانېدلی چې په لسګونو کلونو کې خپلې سیمې له چیلنج نه پرته اداره کړي.)) دا ځکه چې دده په نظر ((دولتي قدرت مشروعیت حتی د پخوانیو باثباته اروپایی دولتونه په خپلو سیمو کې لکه پرتګال او برتانیه هم له عمومي بحران سره مخ دي.)) څرګنده ده چې ددولتي بحران پایلې بې نظمي او په خاص ډول سیاسي بې نظمې او بې ثباتې وي.

په افغانستان د دولتي مشروعیت بحران د سرطان په کودتا سره پیل شوی او تر اوسه هم دوام لري. که څه هم د امارتي نظام له نسکورېدلونه وروسته حکومتونه د اساسي قانون پربنسټ په سراسري انتخاباتو سره جوړ شوي دي. خو، لکه ځنګه چې تر مخه یې بیان وشو، دغو حکومتونو د عمل په ډګر کې مشروعیت، اخلاقي نفوذ او اهمیت له لاسه ورکړی، په دې چې چارواکو یې زیاتره د مصلحت او شخصي غرضونو له مخې چلند کړی، نه د قانون له مخې. ددغسې چلند پایلې بې عدالتي، عام نارضایت او ناارامي شوه. نو د قانون او عدالت له مخې د حکومت چلېدل د ثبات او امنیت د خوندي کېدلو لپاره اساسي شرط دی. خو امدادالله یان او اختر محمدیان ممکن هغه وخت له انتحاري وژنو نه لاس واخلي چې دوی پوه شي دغه د انسان پر ضد عمل هم د

اسلام او هم د ټولو حقوقي منشورونو پرضد دی، چې د نړۍ ټولو حکومتونو د ټول بشریت په اسازیتوب منلی او په منلو سره یې د لویې بشري ټولنې یا د ملګرو ملتونو د موسسې غړي شوی دي. ددغسې پوهې او پوهنې ښوونه د نړۍ په کچه حتمي شوې که څه هم هغه به ډېر وخت ونیسي. انسان چې په ګډه او ملګرتوب سره تر اوسه حیرانوونکي کارونه کړي، ددغه کار توان هم لري خو چې دولتونه، په خاص ډول لوی او شتمن دولتونه ددغه کار لپاره په ټینګه لاس په کار شي او ملګري ملتونه هم قادر کړي، چې د پوهنې دلا عام کېدلو لپاره د عمل وړ پرګرامونه وباسي او هېوادونه یې دپلي کولو لپاره وهڅوي او مرسته ورسره وکړي.

(پای)



# یادښتونه

۱. جان هورګن، د جنګ پای،د مک سوي ني بوکس خپرونه، کليفورنيا، ۹۸،۲۰۱۲

۲. پورتنی اثر،۱۷

۳. پورتني اثر، ۵۰،۸۱

٤. سنتیا براون،لوی تاریخ، له بګ بینګ نه تر اوسه، د نیو پرس خپرونه، نیویارک ،۲۰۰۷،۱،۲

۵. رچرد بري نن، دساينسي سواد قاموس، دجان وايلي او سنز خپرونه،۱۹۹۲ نیویارک، ۲۴۸

٦. جان ستوسنګر، ملتونه ولې جنګ ته ځي، د سان مارتن خپرونه، نیویارک ۲۰۳،۱۹۸۵

۷. د جنګ پای، یاد شوی اثر،۱۰٦

۸. د قول نقل، پاسنی اثر،۱۴٦

۹. ایمانویل کانت، دغې پوښتنې ته ځواب. تنور څه ته وايي؟ د پنګ ون بوکس، نیویارک ۱۵،۲۰۰۹

۱۰. ملتونه ولې جنګ ته ځي، یاد شوی اثر، ۲۰۴

۱۱. پورتنی اثر، ۲۱۳

۱۲. پورتنی اثر،۲۱۹

۱۳. د کانت یاد شوی اثر، ۲۰

۱٤. د جنګ پای، یادشوی اثر،۱۳۹

۱۵. ملتونه ولې جنګ ته ځي، یادشوی اثر، ۲۱۸

۱٦. ډبليو، تارن،لوي سکندر،دکمبريج پوهنتون خپرونه ،۱۹۷۹، کيمبريج، ۹

۱۷. تارن ياد شوی اثر، پيټر ګرين، د مقدوني سکندر،تاريخي بيوګرافي، د کليفورنيا پوهنتون خپرونه، محمد حسن کاکړ پښتون، افغان،افغانستان،د افغانستان کلتوري ودې ټولنه، ۲۰۱۱ ، ٦۰-۳۵

۱۸. پيټر برګن، ډېر اوږد جنګ، د فري پرس خپرونه، نيويارک ،۳۳۲،۲۰۱۱

۱۹. پورتنی اثر، ۱۸۴،۱۸۳

۲۰. قران مجيد،د عبدالله يوسف علي ژباړه مانا، امريکا ټرسټ خپرونه، مري ليند،۲۱۵،۱۹۹۱

۲۱. جان ويليمز اسلام، د جارج برازلر خپرونه، نيويارک، ۱۷۴،۱۹٦۱ محمد حسن کاکړ زما غوره ليکنې، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه ۵۰۴،۲۰۱۰

۲۲. ايرک هابسبام، د امپراتوري په اړه، امريکا،جنګ او عالمي لوړ توب دريندم هاوس خپرونه، ۲۰۰۸،نيويارک، ۱۳

# پیلامه

ولې جنګ؟ دا دوه سره پوښتنه ده. زه نه پوهیږم چې خلک څله جنګ کوي. سره له دې هم کوښښ کوم دغې پوښتنې ته په راتلونکو پاڼوکې ځواب ووايم. دا چې د ۱۹۹۸ کال د ريت ليکچرونه (Reith Lectures) د جنګ موضوع شوه، په آسانۍ شرح کېدلی شي. څه وخت چې جيمز بايل (James Boyle) د بي بي سي راديو څلور چلوونکي د ۱۹۹۷ په پسرلي کې رانه وغوښتل چې دغه ليکچرونه زه ورکړم، هغه دغه موضوع زما خوښې ته پرېښوده. ما ډېر سوچ وکړ او په دوهمې غونډې کې مې ځينې اندونه ور وړاندې کړل چې هېڅ يو يې هم لږ تر لږه په نېغ ډول د جنګ په اړه نه و. وروسته له دې چې هغه له مانه واورېدل په نرمه ژبه يې وويل چې ته به د هغه په اړه ښه وغږېږې، چې ډېر ښه پرې پوهېږې. بيانود جنګ موضوع غوره شوه.

خو زه د جنګ شخصي تجربه نه لرم. څنګه چې زه په ماشومتيا کې د ناروغۍ له امله عيبي شوی وم، د وسله والو پوځونو په واحد کې مې خدمت کړی نه دی او د جنګ له صحنو سره زما آشنايي لنډه او له لېرې نه ده. ما د جنګ د خبر لوځي په څېر په کال ۱۹۸۳ کې لبنان او په ۱۹۹۰ کې خليج، پخوا له دې چې جنګ پيل شي وليدل. داسې هم ما د ناآراميو په وخت کې هم له شمالي ايرلند، شمال ختيځ سرحد (د خيبر پښتونخوا تر څنګ سيمه) او جنوبي افريقا څخه راپورونه تهيه کړل. له لبنان نه پرته، زه په هېڅ ځايکې له خطر سره مخ شوی نه يم.نو له جنګ سره زما اشنايي د دوهم لاس او اکاډميکه ده چې هغه مې تر ډېره حده د سينډ هرسټ (Sandhurst) د پاچايي نظامي اکاډمۍ

کتابتون نه تر لاسه کړې چې هلته مې د ۱۹۶۰ او ۱۹۸۵ کلونو تر مينځ د برتانيې راتلونکو افسرانو ته د نظامي تاريخ ښوونه کوله.

خو سينډهرسټ د جنګ په اړه يوه رښتيانۍ پوهنه وه ددغې اکاډمۍ روحيې او ورځنيو چارو ماته نظامي ډسپلين وښود، ځکه چې مونږ د يوه ضيق مهال وېش له مخې اوږده ساعتونه کار کاوه چې فرد ته يې د بل کار مجال نه ورکاوه. ورځ له نهو بجو نه تر پنځو پورې وه او نه هم د ويکنډونو (د اونۍ دوه ورځنۍ رخصتي) لزوماً د چا برخه وه. د بيا تنظيم په يوې دورې کې حتی کالنۍ رخصتي هم نه ورکول کېدله په دې ډول ما زده کړه چې په پوځ کې د ځان لپاره وخت يو امتياز دی، نه حق او دا چې دغې موسسې ته وظيفه تر نورو وجايبو نه د مخه ده. په هر حال، هغه به ماله سرتېرو ښخه، چې زما همکاران وو، زده کړېوی. د ۱۹۶۰ کال په پسرلي کې سيند هرسټ د هغو افسرانو له خوا چلول کېده، چې په دوهم نړۍوال جنګ، يا له هغه وروسته جنګونو کې يې برخه اخيستې وه. ډېرو يې ددښمن پروړاندې د زړورتيا مډالونه لرل. دوی د زړه سواندو انسانانو دغسې يوه ټولګه وه چې له مقاماتو سره يې پر ځان ويسا توب خوښ ايسيدونکی چلند کاوه. دوی د صلاحيت د مقاماتو پرنسيب ته او داچې هغه ددوی له ژوند نه غوښتنې لرلې، په اتومات ډول درناوی کاوه. دا چې دوی له مرګ سره مخ شوي او مرګونه يې ليدلي وو، په خپلو هډوکو کې پوهېدل چې يوازې د اطاعت عادت او دامرونو پې له ګړ او بړ ترسره کولو سره پوځ موثر کولی او ژوند ژغورلی شي او که نه هغه به په غفلت او نانډرۍ سره ضايع شي. ددوی اخلاق حتی له هغه نه هم پياوړي وو. ماته مالومه شوه چې مسلکي افسرانو د وظيفې اجرا د شخصي عزت موضوع ګڼله. په وظيفه کې ناکامي دوی

ته د فردونو په حیث او ددوی له لارې ددوی ټولو ملګرو ته چې دوی ورپورې تعلق لاره، بېعزتي ګڼل کېدله. بېعزتي دغومره شرمناکه وه، چې دوی غوره ګڼله مړه شي، نه دا چې دغه طعنه ورته ورکړل شي.

سنډ هرسټ دغې پوښتنې ته چې (جنګ ولې؟) ځواب ورکړ چې د قانوني دولتونو مسلکي سرتېري جنګ کوي، په دې چې جنګ کول ددوی دنده ده. خو دا د هغې لویې پوښتنې لپاره ځواب نه دی، چې په اصل کې ((جنګونه ولېکېږي؟)) په نړۍ کې یو څو قانوني دولتونه او تر هغو لا کم دولتونه دي چې مسلکي پوځونه ساتي چې ددندې او اخلاقیاتو هغه لوړ معیارونه مراعاتوي چې زمونږ په عصر کې د برتانویانو ځانګړتیا وه. جنګ په تاریخي لحاظ یوه ناولې معامله ده، چې مسلکي پوځونو پکې لږ ګډون کړی دی. که مونږ د جنګ سرچینه له زېږدې نه څلور زره کاله دمخه وګڼو، ډېر شه جنګونه چې تر هغه وروسته په پنځو زرو کلونو کې شوي دي، د عزت خاوند ته او د لوړې روحیې جنګیالي ته یې لږ ځای لرلی دی.

وسلوال ارستو کراتو او لوړو کورنیو جنګیالیو (Knights) او د اشرافو افسر د جنګ په هغو شعرونو کې غټه برخه لرلې وه، کوم چې مونږ ته د چین له اولې امپراتورۍ، د لوړو منځنیو دورونو یا د پاچایي اروپا له خاندني جنګونو څخه رارسېدلي دي. له دوی ټولو څخه زیږه جلبیان، اجیران، سوار شوکمار داړه ماران او نور یرغلګر ډېر وو.

جنګ د تاریخ له نظر نه د غارتګرۍ عمل دی. د هغه د سرچینو ډېره احتمالي سرچینه به په هغو حملو کې وي چې زمونږ ښکاري تېر شویو زمونږ په

هغه تېر شویو کړي چې د وروستي کنګل (Glaciers) دورې له بېرته کېدلو نه په دې پیل وکړ چې حیوانان اهلي کړي او مځکه وکري. دغو لومړنیو پوونده وو او کرونده ګرو آسانه غوښه تر لاسه کړه. دوی ورو ورو زده کړه چې ځانونه له هغو یرغلګرو نه وساتي چې بې له کوم خبرداري نه د کرونده ګرو له پولونه اخوا له دښتو میرو څخه هسک شول چې لوټماري او وژل وکړي. د ساتنې لومړۍ بڼه چې دوی غوره کړه، د حصارونو په شکل وه. څه وخت چې د ځای پر ځای دفاعي تدبیرونو محدودیت وپېژندل شو دوی په دې پیل وکړ چې په خپله په دښمن یرغل وکړي. په دې ډول پوځونه د متقابلو حملو ځواکونو په مقصد رامینځ ته شول او ټولنو د خپلو کروندو اضافي محصول د ټولنو هغو غړو ته ورکړل چې شاید په دایمي ډول د کسبي سرتېرو په شان دنده ترسره کړي. تر زېږدې نه دمخه په درې زرمه کې دغسې کسبي سرتېري هسک شول چې د کرنیز مځکو له پولو څخه لېرې د یرغلګرو مخه ونیسي او حتی د هغو په مینو هم ودانګي.

خو دا د غایوي جنګ د پیل کېدلو او د وسله والو کسبي ځواکونو له خوا د انساني ټولنو د غلبې تر مینځ یو ډېر اوږد ګام و. مدنیت چې د خپل پاینښت لپاره دننه او دباندې په کرارۍ او قانون ولاړ دی یو نازک پیداینښت دی. له زېږدې نه د مخه په لومړۍ زرمه کې ددایمي پوځونو د لومړۍ اختراع او له نن څخه درې سوه کاله وړاندې د هغو د عام کېدلو تر مینځ ډېرې ناکرارۍ پېښې شوې دي. د چین امپراتورۍ چې د سیاسي ټولنو په وړاندې شویو دولتونو کې تر ټولو پخوانۍ او دوام لرونکې ټولنه وه، زیاتره هغه وخت له ناکراریو سره مخ شوه چې پوځونو یې منځنۍآسیا د پولو یا د خپلو خلکو کنټرول له لاسه ورکړ. روم

چې منظم پوځ یې په هغه شکل چې اوس هم نفوذ لري، د ثبات په راوستلو او په ځو پېړیو کې د هغه په خوندي کولو کې بریالی و، له دې امله و چې په خپلو سرحدونو کې یې د امپراتورۍ د بقا لپاره فعاله دایمي قوه میشته کړې وه او هغه وخت چې پوځ یې په پای کې ددولت دوسیلې په توګه پاتې راغی، ناکرارۍ پکې پیدا شوې، چې د اروپا په پراخو ساحوکې یې زر کاله دوام وکړ.

په پراخې نړۍ کې چې د چین او روم امپراتوریو څخه اخوا وه جنګونه عام وو. دغه جنګونه زیاتره د لوټمارۍ نتیجه وه. خو هغه وخت چې ټولنې پیچلې شوې د جنګونو محرکات شخصي فاميلي او ډله ییز اعتبار د سیمو کنترول، بازارونو، یا مالونو یا د هغو د امنیت خوندي توب ته د لارې مندل شول. دغه ټول محرکات د یونانی نړۍ په نظامي تاریخ کې څرګند دي چې له بې اتفاقۍ سره علاقمن وو. له روم نه په وروسته اروپا کې جنګونه په خاص ډول د حقونو په سروو چې هغه حقوقي یا خانداني وو. د جنګ دغو محرکاتو ته په اومې پېړۍ کې د اسلام هسکېدل، له دین سره د مطابقت مفکوره وروسته د جنګ یو لوی عامل شو، لکه چې ډېر وروسته بیا سیاسي ایډیالوجۍ ګانو دې ته په ورته مطابقت باندې ټینګارکاوه. په عین حال کې په اتلسمې او نولسمې پېړۍ کې د اروپایي سمندري امپراتوریو هسکېدنې د آسیا او افریقا په ډېرو برخو کې د محلي او عنعنوي جنګ په پای ته رسولو باندې غیر مستقیم اثر لاره. امپیریلزم له خپلو بې عدالتیو سره سره اروپایي مستعمرو او تصرفاتو داخلي ارامي خوندي کړه. دا به تضاد ښکاره شي، خو دننه په همدغې اروپا کې وو، چې د نولسمي پېړۍ له یو څه ارامې دورې نه وروسته، دغه جنګ متمدن ژوند په دغسې شدت سره ټوټه کړ، چې د مخه یې مثال لیدل شوی نه و. لومړي نړۍ وال جنګ

ددغې لويې وچې سياسي جوړښت له بيخ نه ونړوه، تاريخي دولتونه يې له مينځ نه يووړل او دغسې حالات يې رامينځ ته کړل، چې په هغو سره متعرضې ايډيالوجي ګانې، هلته چې پخوا نسبتاً اعتدالي پاچايي نظامونه حاکم وو، په واک شوې. دوهم نړۍ وال جنګ چې په اصل کې د همدغو ايډيالوجي ګانو جنګ و، د لويې وچې اروپا پولې له مينځ نه يووړې او په پای کې يې ټوله نړۍ پکې ښکيل کړه. داسې هم دغه جنګ د نړۍ لېږې ګوښوته دغسې تخريبي تکنالوجي نقل کړه، چې اټومي بم يې نهايي اختراع وه. تر ۱۹۴۵ پورې جنګ له ډېرو دغسې تحولاتو نه وړاندې لاړ چې انسان د مخه دغه شکل ليدلی نه و او نه شي کولی هغه بيا وزغمي. هيروشيما او ناګاساکي يوازې نظامي پېښې نه وې هغه دغسې اخطارونه وو، چې جنګ اوس د انساني اړيکو دغسې يوه وسيله شوې ده، چې کولی شي ټول هغوی له مينځ نه يوسي چې غواړي په خپله ګټه ترېنه کارواخلي.

نو د (ولې جنګ؟) دغسې يو پوښتنه ده چې نور نو له تاريخي قرينې نه اخوا د پوښتنې وړ نه ده، ځکه چې جنګ له دې وروسته د ډېرو ورانوونکو وسلو په شته والي سره ګرد سره نامعقول شوی دي؛ خو د څنګه جنګ؟ پوښتنه لا پر ځای پاتې ده. که څه هم دا به تضاد مالوم شي. څنګه چې يو مسوول سياستمار هر چيرې پوهېږي د اټومي جنګ مخه په يوه شرط نيول کېدلی شي او هغه دا چې دغسې لارې ومونډلې شي چې د قدرت ګټونکو پروړاندې چې عمومي سوله يې ترټلې وي له نظامي ځواک نه کار واخيستل شي. د شکر ځای دی، چې په دغه اټومي عصر کې تر دې دمه دغسې طريقې مونډلې شوې دي. خو د حل غوڅه لار لا هم مونډل شوې نه ده او بايد يو څوک درک کړي چې هغه به هيڅکله پيدا نه شي. ((د آزادۍ شرط دايمي څارنه ده.)) ټول معقول کسان له

جنګ څخه ژغورنه غواړي او ژغورنه یوازې هغه وخت یقیني کېدلی شي چې ددموکراسۍ کسبي جنګیالانو ځانونه خپلو دندو ته وقف کړي وي. دوی زموږ د احترام، اعتماد او ملاتړ مستحقان دي.



# لومړۍ څپرکی

## جنګ او زمونږ نړۍ

جنګ دغې پېړۍ(شلمې پېړۍ) ته یو افت و. د تېرو نوي کلونو په بهیر کې د هغو درې نورو افتونو، په تېره د قحطي او طاعون مخنیوی شوی دی. په نړۍ کې اوس داسې ځای نه شته چې د قحطي چاره یې ونه شي، په داسې حال کې چې اوس هغه ناروغۍ ګانې چې زمونږ په ملیونو تېرشوي یې وژلي په عمده ډول لکه وبا، کولرا، محرقه (ټایفس) اوس یو څه هیر شوي افتونه دي. جنګ اوس د انسان ژوند، سالم توب نېکمرغۍ او خوښۍ ددښمن په شان د هغو ځای نیولی دی. د انساني افرادو په ژوندانه او په ټولنو باندې چې مونږ پکې اوسېږو، د جنګ اغیزه ددغو لیکچرونو موضوع ده.

زما د وینا ډېره برخه د جنګ د افت ډول طبیعت او دهغې طریقې په اړه ده، چې له واړه شروع نه یې زمونږ په دغې پېړۍ کې په خپله د مدنیت پایښت وګواښه خو هیله کوم چې زه خپل لوستونکي په دغه فکر کړم لکه چې په خپله په دغه فکر شوی یم، چې د جنګ ډېره ناوړې خوا اوس زمونږ تر شا ده او دا چې بشر به په خپل ټینګ عزم او څارنې سره وکولی شي چې د نړۍ چارې په دغه ډول ترسره کړي، چې جنګ ته به وار په وار لږ ځای پاتې وي.

په لومړي نړۍ وال جنګ کې[۱] لږ ترلږه لس مليونه انسانان د نښتو په ډګرونو کې ووژل شول. ددوی ډېری يې ځوانان يا تنکي ځوانان وو. په مليونو نور په جنګ پورې د مربوطو علتونو له امله مړه شول. دوهم نړۍ وال جنګ[۲] پنځوس مليون انسانان له مينځ نه يووړل. ددوی له نيمايي نه لږ په يونيفورم کې خدمتګاران وو. د بېلګې په ډول يوګوسلاويا د خپلو خلکو لسمه برخه له لاسه ورکړه چې دهغو ډېره وړه برخه يوګوسلاويا له پاچايي پوځ څخه وه. پاتې يې د محروميت او دداخلي انتقامي عام وژنې نتيجه وه. د جنګ تلفاتو د ۱۹۴۵ له ستړې سولې نه وروسته هم دوام وکړ. په چين، ويتنام، الجيريا منځني ختيځ، انګولا او موزامبيق کې داخلي جنګ او د ملي آزادۍ جنګونو او د امپراتوريو له مينځ نه تللو نه وروسته قومي جنګونو تلفات پنځوس مليون نور تخمين شوي دي. مونږ له هغو وژنو نه هم ډېر متاثر شوی يو چې په دغې لسيزې کې په روندا او بوزنيا کې شوي دي، چې متمدن وجدان يې سخت سپک کړی دی. دغو جنګونو يو مليون انسانان نور په تلفاتو کې ور اضافه کړل.

د سرشمېرنې متخصصان وايي چې تولدات د تلفاتو ځای زر ډکوي. په کوم بل ځای کې هېڅ جنګ د ۱۸٦۴-۱۸۷۰ کلونو تر مينځ د پاراګوای له جنګ نه پرته دتورمرګ[۳] (Black Death) ځای نه دی نيولی چې په څوارلسمې پېړي کې يې له هر څلورو څخه يو د مرګ کندې ته وسپاره. د تولداتو اندازه زر خلا ډکوي، لکه په پاراګوای کې يې چې ډکه کړه چې د نارينه وو، نوي سلنه يې له لاسه ورکړي وه او نفوس يې وار په وار ډېرېږي.

که د جنګ تاوانونه يوازې شمېرنه وګڼله شي، هغه به له يادنه وايستل شي. خو دغه تاوانونه يوازې په ګرافونو کې نه اندازه کېږي. نه شمېرل کېدونکي

تاوانونه یې جذباتي مصیبتونه دي، چې په هغه سره د فامیلي اړیکو له امله یو مرګ څو واره او په اوږدې مودې اوپه واقع کې ژوند په ټولې مودې کې محرومیت وي.

د سرشمېرنې متخصصان مني چې د جنګ ضایعات د نارینه او ښځو تر مینځ د نسل د نا انډول توب لامل کېږي. په ۱۹۴۵ کې په جرمني کې دغه نا انډول توب د واده وړ نارینه او ښځو تر مینځ د یوسل په وړاندې یو سل او اتیاو. چې له امله یې په لکونو ښځې له واده کېدلو یا له بیا واده کېدلو نه پاتې شوې. په شوروي اتحاد کې چې لس ملیون نارینه یې بایللي وو، نه څلور ملیون، ددغه نا انډول توب تناسب نورهم لوړ و. پردې بر سیره په دغې پېړۍ کې د جنګ جذباتي تاوان په ډېر درد ناک ډول زیات و. د جنګ زخمونه تل د انسان له لاسه وي، د هغو پرخلاف چې د ناروغیو له امله وي، چې انسان د هغو پرضد په زرګونو کلونو بې ګټې جګړه کړې ده. په جنګ کې د یوه نزدې خپلوان د مړینې خبر، چې په عنعنوي ډول نا څرګنده او اوږده موده یې نیوله د (ولې؟) له دایمي او معنالرونکې پوښتنې سره ملګرى و، د هغو له خوا چې ترېنه خبرېدل. زمونږ په عصرکې دغه څه پرې ورزیات شول چې (دا به مونږوي) او که همداسې وي (څه وخت؟).

مونږ په پرله پسي ډول ځانوته مبارکي وایو چې دا د خبرونو پېړۍ ده. د خبرونو ټولونکي دعصر نومیالي شوي دي او هغه وسیلې چې دوى په هغو سره خبرونه انتقالوي–ټیلګراف، رادیو، تلویزیون او اوس فکس او اي مېل زمونږ د وخت  په عصري عجایبو کې راځي. خبر نن ورځ ښه او نزدې اړین څیز دى، حتى که خراب هم وي، لکه چې په لرېدونکې اندازه نوروته وي. خبرونه چې

اوس په پرله پسې ډول خپرېږي، زمونږ په شعور نفوذ کوي او مونږ هڅوي چې له یاده وباسو چې هغوی چې اوس هم ژوندي دي په اوږده موده کې خبرونه ورته هغسې څه وو، چې نه يې غوښتل وايې وري. دټیلګراف هلک چې د کلیو په کوڅو کې په بایسکل سپور ګرزېده د ملکې وکټوریا[۴] د وخت خلکو ته د خبرو رسولو يوعلامه وه، خوهغه ددواړو جنګونو په بهیر کې، پلرونو، میندو او مېرمنو ته په واقع کې د ترهګرۍ بد شګون و. په دغه وسیلې سره خلکو ته دهغو د کورونو دوره په مخ کې د مرګ خبر رسول کېده او پیل يېداسې و، چې ((په خواشینۍ سره خبر درکوو.)) دا په پرله پسې ډول ددغسې دعا لپاره یو محرک و، که څه هم دعا به په دغو الفاظو سره نه ادا کېده چې ((خدای دې وکړي چې له مونږ نه تېرشي؛ پرېږده چې په بل کور کې ودرېږي. خدای دې وکړي چې مونږنه اوسو.))

په برتانیې کې د لومړي نړۍ وال جنګ په وخت کې دغه دعا څو ملیون کرته ونه منل شوه. تیلګراف هلک اوه سوه زره وار د یوه زوی، مېړه یا ورور د مړینې خبر ورسوه رابرت ساندرز دسوم (Somme)[۵] جګړې له پیل نه دوه اونۍ وروسته چې زوی يې هلته سرتېری واو شل زره ځوان برتانوي سرتېري وژل شویوو، لیکي چې ((مونږ له تیلګراف نه چې تازه ډېرو ته رسېدلی دی وېرېږو.)) (د ورځې ترور چې د جنګ وخت تیلګراف ته ویل کېده، یوازې په هغه څه چې يې ویل په نېغه، سمله لاسه او نه رفع کېدونکي درد حواله کاوه. دال زیل جاب (Dal ziel –Job) د دوهم نړۍ وال جنګ سمندري افسر وايي چې د لومړي جنګ په وخت کې د یوه تنکي او یوازني زوی په توګه د خپل پلار له مړینې نه خبر شو. ده د سمندر غاړې په یوې کوټې کې چې مور يې کرایه کړې وه او پلار

يې د جنګ په ډګر کې و، له يوې نانځکې سره لوبې کولې او مور يې چې د کړکۍ شاته خپل ويښتان ږومنځول ورته کړه چې دادا دې د جنګ له ډګرنه کورته راتللی نه شي هغې خپل ويښتان هماغسې ږومنځول او بيا يې واده ونه کړ، که څه هم هغه په دوهم نړۍ وال جنګ کې لا هم ځوانه وه.

تيلګراف چې به کله راته هم په مرګکي اثر سره کړول کول. راځئ چې يوه بېلګه وړاندې کړم. د شلمې پېړۍ له غميزو څخه يوه داده چې هر څوک د جنګ يوه قيصه لري، کله ښه او زياتره بده. زه به دځان په اړه يوه وړاندې کړم، چې درد ناکه ده. ما د پلار له خوا خپله نيانه پېژندله. هغه په کال ۱۹۱۷ کې زماله زدکړې نه دمخه مړه شوې وه. زما پلار ته چې هغه وخت په لوېديځه جبهه کې اراس (Aras) ته نزدې په يوې لواکې افسرو، دسختې ناروغۍ خبر ورسېد ورته د زړه سواندۍ له مخې رخصت ورکړل شو. خو چې هغه کور ته راغی، وخت له وخت نه تېرو. دی درې لوې استېشن نه د کور په لور روان و، چې د کلي يو ګاونډی ورسره ملګری شو او هغه بې له دې چې هغه د مور له مرګ نه خبر وي ورسره خواخوږي وکړه. پلار مې دغه قيصه خپلو خاطرو کې ياده کړې، چې د سانسور په خاطر په دقيق ډول کښل شوې ده. وروسته چې دی په خپله مړينې ته نزدې و، يو څه نور يې هم راته وويل او هغه دا چې په هغه اوړي کې چې مور يې دی په خاکي کاليو کې فرانسې ته د جنګ کولو لپاره د رېل وې استېشن ته ورسوه د خدای په امانۍ په وخت کې ضعف وکړ او په ژړه غوني آواز يې ورته وويل چې زويه ((بيا به دې هېڅ ونه وينم.)) زه دهغه درد په ژورتيا هغه وخت حيران وم او اوس هم يم چې دغو کلمو به دمينه ګر پلار او مور زړونه څومره دردولي وي. زما عمه د لومړۍ نړۍ وال جنګ له کونډو څخه

وه. هغې د ژوند په اخر کې څه نور دردونه پرې اضافه کړل. هغې له خپلو درې ورونو سره جنګ ته د تللو په وخت خدای په آماني کړې وه، خو کله چې دریم یې فرانک په ۱۹۱۷ کې جنګ ته تلو، وویل چې ((غم په مور غلبه وکړه. هغه په هغه ژمي کې ناروغه نه وه. بس له غم نه یې زاره وچوه.)) په دغه ډول یوې مور له ډېر غم نه ځان مرګ ته وسپاره، چې لکه خپله هغه وړاندوینه رښتیا کړي چې کله یې خپل کشر زوی جنګ ته استوه ورته کړې ده. عجیبه دا هم وه چې دغه درې واړه ورونه چې کلونه یې د جنګ په خندقونو کې تېرکړي وو، کورته روغ رمټ ستانه شول .

زه د خپلې کورنۍ دغه وړه خاطره د هغې شخصي اهمیت له امله نه بلکې د هغې د عالمي اهمیت په خاطر وړاندې کوم. دا هغه موضوع ده چې جارج فریزر (George Fraser) په خپلو هغو یادونو کې یاده کړې، کوم چې هغه په ۱۹۴۴-۴۵ کې په برما (اوسني میان مار) کې په سرحدي کنډک کې د فلم ګوتو ته سپارلې وه. دی د خدمت په ټولې مودې کې هغه خطر ته ښه ځیر و، چې ورسره مخ و. د هغه له نهو ملګرو څخه دوه یې وژل شوي وو، چې ده هغه ((د فعال لاټري سرویس)) په نامه یادکړي دي. هو هغه په واقع کې زیاتره د هغو په اړه و، چې په انګلستان کې وو. دی پکې وایي چې ((کومې هغه اندیښنې چې سرتېري یې د جنګ په ډګر کې تجربه کوي، له هغو سره د پرتلې نه دي چې نور یې په کور کې کړول کېږي .... هغه میاشتې به زما د (پلار او مور) په ژوندانه کې ډېره اوږده موده وه.)) زماپه اند دي غواړي ښکاره کړي چې سرتېري پوهېږي چې کله او څله د ویرې اندیښنه وکړي، چې هغه زیاتره وخت نه وي، خو د جنګ خدمت د((د ستړي کېدلو او بې طاقتي کولو اوږدې مودې ګڼل

شوې دي چې په مینځ کې یې د ترور شدید حال راځي.)) خو هغوی چې ((ددوی په اندیښنه کې وي، هره ویښه کړۍ یې کوي. پردې برسېره په دغې پېړۍ کې دایمي اندیښنه په ټینګې جذبې سره د اروپا، او شمالي امریکا په زیاتره خلکو او د آسیا او آسترالیا په ډېرو برخو او د افریقې په ځینو برخو کې د اوږدې مودې په بهیر کې حس شوې ده. ولې داسې و؟ بیاهم جارج فریزر په دې اړه رڼا اچوي. د هغه نیا ددوهم نړۍ وال جنګ د خبر په اورېدلو سره کړه چې ((ښه!نارینه به بیا جنګ ته روانېږي.)) د هغې د یوه واقعیت سم له لاسه منل په هغه ډول چې یې بیان کړه مونږ ته دا رایادوي چې پرمختللو دولتونو د هغې په ژوندانه کې دغسې څه وکړل چې د مخه هېڅ دولت بریالی شوی نه و چې هر نارینه سرتېری کړي. پخوا ګرانه وه چې پوځونه ټول شي. سرتېري به په اجرت سره نیول کېدل خو هغه په دغومره ډېر لګښت سره وو، چې اجیر پوځونه به واړه وو.دوی د منظم پوځ په توګه د اوږدې مودې لپاره نیول کېدلی شول، خو پوځونه به د ډېر لګښت له امله واړه وو. په نولسمې پېړۍ کې ملي دولتونو په دغسې وسیلو سره، چې پوهېدل پرې اوس هم ګران دي وکولی شول خپل خلک وهڅوي چې د خدمت وړ نارینه یې په اوله ځوانۍ کې باید نظامي روزنې ته حاضر وي او پر هغه برسېره د ضرورت په وخت کې چې وغوښتل شي، د خدمت لپاره تیاروي.

په دې ډول د جلب دغه طرز د لویو پوځونو جوړېدل د سولې په وخت کې په لږ څه کم لګښت سره ممکن کړل، په داسې حال کې چې د احتیاط مکلفیت د جنګ په وخت د لویو پوځونو د تنظیم وعده ورکوله. مونږ په هغو میکانزمونو پوهېږو چې دغه پروسه یې شونې کړه. د سر شمېرنو ادارو د هغو نومونه او پتې

ولیکې چې د نظامي خدمت وړ وو. د اجباري پوهنې ترویج بالقوه جلبیان تر دسپلین لاندې راوستل او د نظامي روزنې لپاره وړو ګرزول. په عین حال کې د فابریکو کار چې په ماهیت کې دسپلین ډول کار دی هم دغسې ځیزونه تولید کړل چې د ملیونو جلبیانو دوسله وال کولو او دنورو وسیلو د تهیه کولو لپاره ضروري وو. د ډېرو شتمنیو په تولید سره یې مالیات هم ډېر کړل.سره له دې هم دغه انکشاف نه شرح کوي چې ولسونه، له دولتونو څخه بېل ولې راضي یا لړترلږه تسلیم شول چې دغومره لوی پوځونه تنظیم شي چې په هغو سره په دغې پېړۍ کې دوه ځل د نړۍ په سویه او تر هغه نه ډېر په سیمو کې په دوی باندې له حدنه زیات مصیبتونه او جذبې راوستلی شي.

ټول هغه څه چې مونږ ویلي شو، دادي چې دوی همدغسې وکړل. تاریخ پوهان مني چې تېره پېړۍ (نولسمه) د اروپا د((نظامي کېدلو)) دوره وه، چې یوه اغیزه یې دا وه چې نظامي خدمت یېدغسې یوه عزتمنه وظیفه وګرزوله چې ټول یې باید تر سره کړي او دلویو پوځونو او سمندري پوځونو ساتل د ویاړ وړ عمل وي. د نظامي حالت دغې روحیې ددغې پېړۍ تر لومړۍ نیمایي پورې دوام وکړ او دا چې دغه حالت جمع د ډېرو جنګیالیو شتون ممکن کړ چې په ډېره اندازه او د اوږدې مودې لپاره جنګونه وکړي چې د مخه هېڅ نه ولیدل شوې.

اوس مونږ ورته د سولېدنې یا اصطکاک جګړې (Battles of Attritions) وایو چې مثالونه یې په لومړي جنګ کې پاسچندډایل (Passchendaele) او وردن (Verdun) او په دوهم نړۍوال جنګ کې د ستالین ګراد او نورماندي جګړې دي. سولېدنه یا اصطکاک هغه پروسه ده چې په هغه کې تلفات په نویو سرتېرو سره په پرله پسې ډول عوض کېږي تر هغوی چې د یوې یا بلې خوا اراده

ماته شي. خوتناقص دادی چې جنرالانو، او دولتونو د لویو پوځونو لپاره استدلال کاوه چې په هغو سره به بري په آسانه او ارزانه تر لاسه شي.

خو څنګه چې ددغو جګړو د تلفاتو لستونه یوازې اوږده وو نتیجه یې په دي ډول توجهه کېدله چې هغه دفتحې لپاره یوه ضروري وسیله ده خو کله چې خلکو په اعتراض پیل وکړ چې ایا دغه فتحه په دغومره تاوان ارزي، لکه فرانسویانو او انګلیسانو چې له ۱۹۱۸ څخه وروسته وکړه؛ نو مونږ ویلی شو چې دا ددغه نظامي حالت د سرچپه توب پیل وي چې اروپایې په نولسمې پېړۍ کې مسحوره کړې وه. خو ذهني حالتونه په سختۍ سره تغیر کوي او هغه په یوه یا بل ځای او په یوه او بل وخت کې په نامنظم ډول هم وي. یوازې له ۱۹۴۵ نه وروسته و چې جرمنانو او جاپانیانو فیصله وکړه چې د بري لپاره هڅه نه زغمېدونکی تاوان لري. د امریکې د نظامي غلبې روحیه یوازې دویتنام په غمیزې سره سرچپه شوه او یوازې په دغې لسیزې کې وو چې د ویتنام نوي نسل په دې پیل وکړ چېووایي ایا هغه جنګ په دې ارزېده چې په هغه کې د ۱۹٦٦ او ۱۹۷۲ ترمینځ کلونو کې هرکال ددوی دوه لکه ځوانان تلف کېدل.

زه تر اوسه زمونږ په نړۍ کې یوازې د جنګ د انساني تاوان او تر زیات حده د هغه د جذباتي تاوان په اړه غږېدلی یم. زه تیاریم چې د خپل له دغه دریځ نه دفاع وکړم، ځکه چې د مادي تاوان جبران نظر جذباتي تاوان ته، چې جبران یې هېڅ نه کېږي، زر او په آسانه کېږي. سره له دې هم مونږ باید په یاد ولرو چې هغه مادي تاوانونه چې ددوهم نړۍ وال جنګ له امله پېښ شوي دي، په هغه اندازه بیساریوو چې ددواړو جنګونو په بهیر کې پېښ شول او داچي هغه چې جبران یې وشي، اقتصادي نورمال حالت یې په لس ګونو کلونو کې واړوه.

په دې هکله چې ددوهم نړۍ وال جنګ مادي تاوان څومره ډېر و، امریکايې غټه بېلګه ده. په ۱۹۳۹ کې د امریکې اقتصاد په نړۍ کې تر ټولو لوی و، چې هغه د نولسمې پېړۍ له اخر نه همدغسې لوی و. تر ۱۹۴۵ پورې د امریکې ملي تولید ارزښت د نړۍ تر ټولو هېوادونو څخه چې سره یو ځای شي ډېر و.

د ۱۹۴۱ او ۱۹۴۵ تر مینځ امریکا چې د ستراتیجیکي بمباریو، محاصرې او په خپلې خاورې کې د جنګ له اغیزو نه مصونه وه، دغه کارونه وکړل: هم یې داخلي لګښتي څیزونه اوصناعتي محصولات ډېر کړل او هم یې کرنیز حاصلات تر اخر حده ورسول او هم یې پاسنی جوړښت (Infrastructure) عصري کړ اوهم یې له موجودو طبیعي منابعونه استفاده ډېره کړه، بې له دې چې تمام یې کړي، بیاهم د جنګ تر پای پورې یې مالي اضافي عواید دغومره جمع کړل، چې د نورو اقتصادونو د جنګ د تاوانونو د جبران لپاره یې د پانګې د په کار اچولو هیله ورکړه. امریکا دغه څه ددښمن او دوست لپاره یو شان وکړل چې ټول هغه مصیبتونه پرې راغلي وو، چې په هغې نه وو راغلي.

کوم هغه مصیبتونه چې پر مغلوبانو تحمیل شوي وو، په رښتیا چې مصیبتونه وو. د جرمني د ټولو ښارونو مرکزونه په بمباریو سره هوارشوي وو او یو ملیون ملکي جرمنان، چې زیاتره یې ښځې او ماشومان وو، په هوایي بمباریو کې وژل شوي وو. د یوې شېبې لپاره چې د جنګ جذباتي خواته وګرزو، له هغو څلور ملیون سر تېرونه چې په جنګ کې ووژل شول، ډېر به یې په حتمي ډول په اخر وخت کې له دې اندېښنې سره عمل کړ وي، چې د دوی د کورنیو غړي ژوندي دي، یا وژل شوي دي.

مطلب دانه دی چې هغه ملت لپاره خواخوږي وښووله شي چې دغه جنګ يې شروع کړی و، دا د دې لپاره ده چې وويل شي چې د جنګ کوونکو هېوادونو په ډله کې جرمني تر ټولو ډېر بمباري شوی و. په مادي لحاظ جاپانيان تر ټولو ډېر تاواني شول. د ۱۹۴۵ کال په بهير کې د جاپان د شپېتو لويو ښارونو د مځکې ساحې شپېته- سلنه وسوزېدله چې په هغو کې په اګست کې د هيروشيما او ناګاساکي تر اټومي تلفاتو نه ډېر ملکيان ووژل شول.

د ۱۹۴۵ کال په بهير کې په جرمني او جاپان کې اقتصادي نورمال ژوند په ټپه ودرېد او دښمنانو د هغو خلکو ته د مغلوبيت په حال کې خواږه ورسول. په شوروي اتحاد کې چې يو فاتح ملت و، د اقتصادي فعاليت دوه –درييمه لږه شوې وه، په داسې حال کې چې په برتانيې کې فتح تر هغه نه لا کمې جيرې راوړې نظر هغې ته چې د يو-بوټ[٦] (U- Boat ) له محاصرې نه تېرې شوې وي. له امريکې نه پرته په هر لوی محارب هېواد کې کلونه نه توليدي نظامي لګښت او په ملکي اقتصادي ډګر کې لږه پانګه په کار اچونه او زياتره هېڅ نه، خلک محکوم کړل. دوی سولې ته هرکلی ووايه او د جنګ په خپله راوړل شويو زخمونو د ټکور په مقصد يې د نويو محروميتونو ګاللو ته غاړه کښېښوده.

خو ځينې زخمو ته جبران کېدلای نه شول، چې هغه د جنګ په بهير کې کلتوري زخمونه وو. په انګلستان، جرمني او آستراليا کې ډېره کلتوري ميراثونه، زياتره په انتقامي هوايي حملو کې له مينځ نه لاړل. داسې هم د روسيې او جرمني پاچايي ماڼۍ ګاني، د وارسا پخوانی ښار، د مانټي کسينو (Monte Cassino) چې د اروپايي رهبانيت مور ګڼل کېدله، په قصدي ډول په

بمبارۍ سره وران شول. په ایټالیې، فرانسې، هالینډ او بلجیم کې د معماري میراث ځنګیز ورانی هم لږ نه و.

د هنري شتمنیو په ضیاع کې یا کلونه کلونه د هغو په بې پته والي کې، چې د شخصي یا رسمي چور نتیجه وه، د برلین د لوی موزیم محتویات شامل وو، چې د ښار په هوا ضد برجونو کې ځای کړل شوی وو. د فراید رخ شین (Friedrichshain) په برج کې د ۱۹۴۵ د مۍ په شپږم اورکې دپخوانیو استاد انځورګرو ۴۳۴ ټوټې وسوځېدلې.

جنګ تل شتمنۍ له مینځ څخه وړې دي او انسانان یې وژلي دي. هغه مطلب چې غواړم دلته یې واوروم او په هغه سر دغه وینا پای ته ورسوم دادی چې جنګ تردې نزدې وختو پورې د ژوند له سترو دښمنانو څخه نه و. قحطي او د قحطي ویره د فرانسې انقلاب له سترو علتونو څخه و. د فرانسې انقلاب هغه پېښه وه چې هغه مونږ د خپلې عصري نړۍ پیل ګڼو. ناروغي هم د انسان لویه دښمنه ده. وبا، کولرا او ټایفس (محرقه یا همای لکه دار) له هغو جنګونونه چې د فرانسې تر انقلاب او یا ممکن له هغه نه وروسته انسانان وژلي دي، تر هغو په ملیونو ډېر انسانان له مینځ نه وړي دي. جنګ پخوا کله کله دایمي اثر لاره لکه په اروپا کې په اولسمې پېړۍ کې ددېرش کلونو جنګ.(۷)

بیاهم انسان ته ددغه خاص مصیبت د راتګ ویره د هغو غیر شخصي او حاکمانه ویرو له راتګ نه په لنډ وخت کې وه، چې هغه د میکروبونو او فصلونو د ناکامۍ ویره وه. د جنګ ویره د ټول وژنې د ویرې په توګه د لومړي ځل لپاره په نولسمې پېړۍ کې د کورنیو په غړو باندې نازله شوه. دغه ویره زما په اند اول د

امریکې په کورني جنګ کې حس شوه لکه چې د یوه شاعر له دغه فرد نه معلومېږي.

ډېرې ګرانې مورې لیک وایي چې پېټ به ښه شي

افسوس چې دغه بیچاره هلک به هیڅ ښه نه شي

دا یوازې په نولسمې پېړۍ کې و، چې په پای کې جنګ په قوت سره دهغو لومړنیو اندیښنوو ځای ونیو چې له محرومیت او ناروغتیا سره تړلې وې.

د حیرانۍ یا د تناقص ځای دی چې پوهېږم چې مادغه دواړه کلمې دمخه استعمال کړې دي - د جنګ ډېر ویرونکی تاوان چې په شلمې پېړۍ کې پېښ شوی دی په واقع کې د هغه د اصلي هیلې په خلاف محصول دی. له اتوماتو وسلونه استفاده، د ډله ییز توپونو بمباري، هواي بمباري، بې پیلوټه توغندي (Unpiloted Missiles) او په نهایت کې اټومي اوترمو هستوي وسلې په نظامي تکنالوجۍ او عمل کې ددغې پېړۍ د هرې وسلې درک او انکشاف په اصل کې ددغه مقصد لپاره و، چې ژوند پرې وژغورل شي لږ ترلږه د خپلې خوا ژوند.

خو ژوند بیا هم زر او په آسانه ونه ژغورل شو، بلکې هغه په خونړۍ سولېدنې سره تمام شو او دا دغسې څرګند واقعیت دی، چې ترې انکار کېدلی نه شي. څنګه وشول چې د انسان د لاس مصیبت یانې جنګ په دغو وختو کې په دې بریالی شوی چې د هغو طبیعي مصیبتونو ځای ونیسي، چې د انساني ژوند ستر دښمن و؟ جنګ د لومړي ځل لپاره څنګه وشو؟ دغه پوښتنې به زما د بل لیکچر مضمونونه وي.

# دوهم څپرکی

## د جنګ سرچینې

لکه چې په تېر څپرکي کې مې بحث وکړ جنګ یوازې په دغو نږدې وختونو کې د ناروغیو او قحطیو د هغو ترټنو دلړی ځای نیولی چې انساني ژوند، آزادي او نېکمرغۍ ته یې پیښ کاوه. مونږ باید واقعیت لیدونکي واوسو. په خپله ژوند یو خطرناک او په نهایت کې دله مینځ نه تللو حالت دی. مونږ ټول مرو خو نن ورځ په برتانیې کې هېڅ یو له لوږې نه د مرګ په خطر کې نه دی او دغه وړاندوینه به سمه وي چې ددغې پېړۍ په پاتې لسو کلونو کې به د نړۍ یوه ډېره وړه برخه د خوړو د نه شتوالي له امله ساه ورکړي. دغه ګڼې په هیلو کې د یوه انقلابي بدلون نښه ګڼله کېږي، ځکه د اتلسمې پېړۍ په فرانسې کې چې هغه وخت فرانسه په اروپا کې تر ټولو شتمن هېواد و، شتمن او خوار یو شان راتلونکي فصل ته سترګي په لارو – خواران له دې امله چې دوی ممکن د ژمي له ولږې څخه ونه وځي او شتمن په دې چې خواران به انقلاب وکړي.

دناروغۍد خطر په هکله هم زمونږ فکر اوښتی دی. ددغې پېړۍ تر لومړیو لسیزو پورې حتی شتمنان د ساري ناروغیو له ویرې نه خپه ګرزېدل، ځکه چې

حتی قیمتي درملنې هم نشو کولی د ناروغیو مخه ونیسي، په داسې حال کې چې له ژوند څخه مرګ ته سفرنه یوازې له بې حیثیتۍ او بد حال سره ملګری و، په نه کنترول کېدونکي ډول دردناک هم و.

دغسې ویرې مونږ په ډېره اندازه پرې ایښي یو خو د جنګ ویره به مو پرې نه ږدي. جنګ په واقع کې لا خطرناک شوی دی. داسې هم دهغه ویره چې مونږ ګواښي. دغه ویره د حاضر وخت لپاره په شا شوې ده. د ساړه جنګ په پای او داتومي وسلې مقابلې په ارامتیا سره نظامي بحران د ورځې موضوع نه ده. سره له دې مونږ په دغې اندیښنې سره زوربېږو چې د خبر نه شته والی به دوام ونه کړي. مونږ په دغې لسیزې کې له ښه خبرنه غږېدلی نه شو چې تلویزیون په روندا او بوزنیا کې د ټول وژنې څېرې راښوولې دي.

دا نا معقوله نه ده، د ناروغۍ او اړتیا په اړه عقلاني قضاوت زمونږ د بدلو شویو چلندونو تایید کوي. انسان په دې اړه چې عقلاني قوت به د انسان سلوک کنترول کړي، په برابره اندازه عقلي دلایل لري. مونږ که څه هم پوهېږو چې په دغې نړۍ کې چې د هستوي وسلې تر سیوري لاندې شوې په برابره اندازه ددې درک کوو چې مونږ خطر منوونکي انسانان یو. په یوه مفهوم سره مونږ خپل ځانونه دغومره ښه پېژنو چې په دغې هیلې اعتماد کولی نه شو، چې انسان به په راتلونکي کې تر هغه نه چې پخوا یې کړي وو، ښه چلند وکړي. ګومان کوو چې په مونږ کې کوم نه له منځ نه تلونکی څیز شته، یا په هغې طریقې کې چې مونږ سره په ګډه خپل ژوند تنظیموو، یا شاید په دواړو کې چې کله یا په کوم ځای کې عمومي جنګ حتمي کوي. مونږ د جنګ دسرچینو په اړه څه ویلی شو؟

لږ څه وي چې دپوهانو ترمنځ داختلاف لامل نه شي.د جنګ دسرچینو متخصصان په پراخ ډول دهغو تر مینځ ویشل کېږي، چې د هغو لپاره شواهد د انسان په طبیعت کې لټوي او هغوی چې شواهد دخارجي یا احتمالي محرکاتو په منځ کې لټوي لومړی ډله چې د طبیعتونو په نامه یادېږي، بیا هم وېشله کېږي، په څرګند شدت سره یوه وړه ډله یې ټینګار کوي چې انسان په طبیعي لحاظ په تشدد یا په زور سره عمل کول غواړي، لکه ډېر حیوانات چې همدغسې دي. زیاتره یې د دوی پر خلاف تشدد یو غیر نورمال او غیر طبیعي عمل ګڼي، چې په ناقصو افراد کې موندل کېږي یا دخاص ډول پاروني یامحرکې په څواب کې وي چې په دې ډول که دغسې محرکات تشخیص یا ټکور یا له منځ نه یوړل شي، دهغه مخه به ونیوله شي د زیاترو طبیعتونو تر منځ ددغې موضوع په اړه ددغه احساس قوت په هغه مثال کې وي، چې هغه ددوی د معتقد کېدلو ازموینه شوې ده. د۱۹۸٦ کال په مې کې د سیوال څرګندونه یا اعلامیه (Seville Statement) ده چې د نژاد (Race) په هکله د یونسکو په سرمشق بنا ده او هغه اوس دامریکې د انترو پولوجیکي ټولنې رسمي دریځ شوی دی. دسېوال څرګندونه پنځه مادې لري او هره یوه یې په دغې افادې پیل کېږي چې ((دساینس له نظر نه غلطه ده)) په دې ډول که څوک دسېوال څرګندونه سمه ګڼي دساینس له نظر نه غلطه ده چې ((مونږ د جنګ کولو میل له خپلو حیواني تېر شویوڅخه په میراث خپل کړی دی.)) یا په دې عقیده اوسو چې ((جنګ یا تشدد دیا بل هر ډول عمل زمونږ په انساني طبیعت کې په ارثي ډول ځای کړی شوی دی)) دغه څرګندونه دا هم وایي چې دساینس له نظر غلطه ده چې د انسان د تکامل په بهیرکې متجاوز سلوک تر هر بل عمل نه ډېر غوره شوی دی

چې ((انسانان د تشدد مغز لري))، یا په پای کې په دې عقیده وي چې ((طبیعي انسیاق)) یا بل ځانګړی محرک د جنګ لامل وي.

د سپوال څرګندونه د ستاینې وړ ډېر څه لري په دې چې هغه په دې لټه کې ده چې انسان له دغې مرګکي عقیدې نه وژغوري چې وایي جنګیې طبیعي میل دی. له بده مرغه په دغې څرګندونې کې ډېر علمي څیز نه شته. ساینس یا علم تر اوسه بریالي شوي نه دي چې د هغې له پنځو مادو څخه یوه یې هم تائید کړي ځینې یې لا هیڅ علمي فرضیې نه دي.

څاروي جنګ نه کوي، دوی وژل کوي چې وخوري، حتی که کله په ضایع کوونکي هیجاني ډول هم وي. جنګ دګام په ګام ارثي تحول لپاره چې دهغه لپاره اعضا پروګرام کړي یو ډېر پیچلی فعالیت دی او د بیالوجۍ توارث متخصصان (Geneticists) په دې اړه چې دغه چلند یا سلوک تر منځ یا دا چې د پراخ انساني سلوک ترمنځ انډول پر ځای کړي، شواهد نه لري. نو په لنډه توګه د سپوال څرګندونه د هیلې وړ څرګندونه ده، نه دافاقي واقعیت. په افاقي ډول ټول هغه څه چې ساینس د طبیعت او جنګ په اړه تثبیت کړي دانسان په دماغ (Brain) کې هغه ځایونه دي چې ساینس پوهانو هغه د ((تېري محل)) ((The Seat of Aggression)) په نامه یاد کړي دي او دا چې هغه به څنګه تحریک یا په فزیکي لحاظ تغییر شي، چې تجاوزي عمل تولید کړي. د تېري محل چې په لمبک سیستم (Limbic System) یا دشوی دی د دماغ دمنځ په ښکته برخه کې ځای لري او هغه له درې ډلو حجراتونه جوړ دی: هایپوتلاموس (Hypothalamus)، سپټم (Septum) اوامیګدله (Amygdale). دغه هره ډله حجرې چې څه وخت زیان ووینې، په برېښنا سره وپارېږي، سلوک ته تغییر

ورکوي خو نه په يوه ډول يا شکل. دبېلګې په ډول که تر موږک دهايپوتلاموس کومه برخه زيانمنه شوه، موږک متجاوز کېږي. له بلې خوا دهغه په برېښنايي تحريک سره دغه موږک لا ډېر متجاوز کېږي، خو هغه د لړ قوي موږکانو په وړاندې. دغه طرح په نورو عضوي انواعو (Species) کې هم همدغسې وي او هغه ددې مانالري چې د تجاوز لوري د ماغزو د پورتنۍ برخې يا دمخني لوبز (Lobes) له خوا کنټرولېږي، چې هلته له باندې نه راتلوکي انتباهات تر عمل لاندې نيول کېږي.

ويره ممکن دهمدغسې پروسې محصول وي، خوداسې هم تدبير او احتياط او هره يوه انتباه له مخنيو لوبونو (Lobes) څخه د هورموني (Hormonal) او عصبي (Neural) انتقال کوونکو له لارې لمبک سيستم ته مخابره کېږي. کله چې له لمبک سيستم نه له مناسبو هورمونو يا محرکاتو څخه کار واخيستل شي، هغه دلا ډېز متجاوز سلوک لامل کېږي. خو هيڅ تجزيې تر اوسه د راتلونکو انتباهاتو پروسه کېدل په ټول دغه پيچلتوب سره تر اخري انتقال کېدنې محصول پورې تعقيب کړې نه ده. په دې ډول مونږ نه پوهېږو چې لمبک سيستم څنګه مخنيو لوبونو وړاندې غبرګون ښکاره کوي. نومونږ نه شو ويلی له حيواناتو سره په مشابهې سره انسان نظر انسياقي ته ډېر عقلانيیا دهغه پر عکس وي. د تېري عصبي سرچينې لا واضحې شوې نه دي.

توارث لا ډېر تنوير کوونکی دی. ډېر متجاوز افراد، نه لږ، په ډېرو عضوي انواعو (Species) کې پيژندل کېدلی شي او د تېري لپاره روزل کېدل دغه خصوصيت انتقال کولی شي. د بېلګې په ډول جنګي سخوندر په انتخاب سره روزل کيږي. مونږ په دې هم پوهېږو چې په انسان کې د ځينوکروموزومو

(Chromosomes) (هغه جين يا ارثي عامل چې موروثي خصوصيات نقلوي.) طرح ګانې له متجاوز سلوک سره ملګري وي او دا چې په زر نارينه وو کې يوه ډله چې د y کروموزوم يې دوه په ارث وړی وي نه يو، د تشدد مجرمان په لوړ نامتناسب شمېر توليدوي، خو دانسان په ټوليزې مطالعې کې نه له لمبک سيستم سره لابراتواري تجربې او نه دتوارث کنترول شوی انتخاب اهميت لري. انسان د لابراتوار له نوع څخه نه دی او دهغه غږي دسکسي يا جنسيـ انجذاب ته په تسليم کېدلود ارث انتخابي مقررې نه مني. د شکر ځای دی چې دا مينه ده چې نړۍ ته دوام ورکوي.

که ساينس مونږ ته دجنګ سرچينې نه ښيي، مونږ بايد دهغو لپاره بل چيرېوګورو، د اجتماعي ساينس او په خاص ډول د انټروپولوجي (انسان پېژندنې) او سيکالوجۍ (ساه پوهنې) نرمې نړۍ ته. دډله ييز تېري له پخوانيو شرحو څخه يوه هم د زيګموند فرويد (Sigmund Freud) ده چې په۱۹۱۳ کې يې وړاندې کړې ده.هغه ويلي وو، چې پلار واکېکورنۍ (Patriachical Family) دټولنې ډېر مهم واحد وي. دده نظر داو، چې د کورنۍ په ښځو باندې د پلار انحصار دهغه زامن وپارول او دغه رخه بيا د نښتې او په پای کې دپلار د مرګ لامل شو. په نتيجه کې د محرمانو پر وړاندې د زوی جرم دکرکې احساس توليد کړ او نارينه يې وهڅول چې جنسي ملګري دکورنۍ له ډلې نه باندې پيداکړي او دغه عمل بيا دښځو د غلا کولو د لومړي جنګ لامل شو. بې له شک نه دا رښتيا ده چې د ښځې غلا په لومړنيو خلکو کې، په تېره په هغو کې چې دنفوس دمحدود کولو د وسيلې په توګه دښځو وژنه پکې رواج وه، دجنګيو عام لامل و؛ خو دا هم په يقين سره رښتيا ده چې ځينې دغسې خلک، د بېلګې په ډول د تا ريخ له نظرنه

اسکیمو (Eskimo) په دې کې نوم ایستلی، هغه چې مونږ یې جنګبولو، دوی نه کاوه. د فروید تیوري که څه هم دهغو لپاره چې ورسره موافق دي، چې جنسي-میلونه زمونږ په سلوک باندې غلبه لري، له یو قیاس نه پرته باید بل څه ونه ګڼل شي.

د حیواناتو د علمي مطالعې پوهانو (Ethologists) چې غواړي تثبیت کړي چې انسان څنګه دخپل سلوک طرحو ته انکشاف او دوام ورکوي، په قیاس سره هم کار کوي،که څه هم دوی دغه څه دحیوانانو د سلوک د مشاهدې له لارې کوي. په۱۹۶۶کې د تېرېدونکی نامتوایتهالوجیست کان رادلورنز (Konrad Lorenz)، د نو بل جایزې ګټونکی د سیمه ییزتوب (Territoriality) تیوري وړاندې کړه. دهغه په نظر غارتګر حیوانان دښکارکولو سیمې لري، چې دوی ترېنه دفاع کوي. داسې هم دوی د تسلیمۍدغیر ارادي غبرګونونو خاوندان دي، چې له دېنه یې منعه کوي چې تر دوی نه په پیاوړي متجاوز باندې حمله وکړي: خو څه وخت چې ښکاري انسان وسلې جوړې کړې، زده یې کړه چې له لیرې یانې له هغې ساحې نه دباندې چې دده د تسلیمۍ غبرګونونه کار کوي، وژل وکړي.څه وخت چې په سیمې باندې یې ښکار وشو، هغه په دې پیل وکړ چې د سیمې د حق په سر له نورو انسانانو سره جنګ وکړي.

رابرت اردري (Robert Ardrey) د سیمه ییز توب فکر نورهم روښان کړ او دغه مشاهده یې پرې ور زیاته کړه چې ښکار او داسې هم جنګ د هغو لپاره د وژلو چانس ډېروي چې په ډلو کې په ګډه عملیات کوي. رابرټ فاکس (Robert Fox) او لاینل ټایګر (Lionel Tiger) د ښکار د ډلې د سرچینو توضیح نوره هم پراخه کړه. دوی استدلال وکړ څنګه چې په دغسې ډلو کې د ښځو

شتون هغوی له خپل اصلي مقصد نه بلې خواته کول، بیا دغه ډلې ټولې نارینه شوې. تر ټولو اغیزناک او په نتیجه کې تر ټولو ډېر متجاوز ښکاري د مشرـ په شان څرګند شو او څنګه چې هغه د ډلې او د ښځو او نارینه متعلقینو ژوند په اغیزناک ډول خوندي کاوه له هغه وروسته متجاوز نارینه مشري د هري انساني ټولنې سلوک ټاکه.

په لنډ ډول خوښه مو وي یانه وي، ټولنه په غاښ او منګولو سره وه. د ټولنې ډېرو پوهانو، په خاص ډول د انټروپولوجۍ په نړۍ کې له دغه فکر سره هیڅ موافقه ونکړه. ډېر پخوا له دې چې ایتالوجستان په دغې ساحې کې هسک شي نورو کوښښ وکړ چې د چارلز ډاروِن د طبیعي غوره کېدنې تیوري له حیواني ډګر نه انساني ډګر ته نقل کړي، چې هغه د اجتماعي داروینزم په نامه یاده شوې ده. ددغې تیورۍ مخالفانو اعتراض وکړ، چې د انسان دغه ظرفیت چې انتخاب وکړي، هغه له دغه ضرورت نه آزاد کړي چې غالب یا تسلیم شي، ووژني یا وژل شي.

امریکایي انټروپولوجسته مارګریت مید (Margaret Mead) د ډاروینزم شاید تر ټولو ډېره نومیالۍ مخالفه وي. هغه د ۱۹۲۰ په لسیزې کې د ځوانې انټروپولوجستې په توګه له سهیلي سمندرونو څخه له دغه خبر سره ستنه شوه چې په ساموِوا (Samoa) کې یې یوه ایډیالي ټولنه وموندله چې په هغې کې د پلار واکۍ واکمني د توسعوي یا پراخ شوي فامیل دننه محبت کې حل شوې په دې ډول چې آزادې مینې جنسي حسادت له مینځ نه وړي، اولاد سره مسابقه نه کوي او تشدد پکې نږدې د نه شتون په حال کې و. هغې دا هم وویل چې په کوم ډول چې د ساموِوا خلکو ژوند کاوه هغه دوی په خپله غوره کړي وو، چې

هماغسې ژوند وکړي. هغې بیا دغه نظر وړاندې کړ چې نور خلک هم د هغو په شان ژوند کولی شي. هغه په خپل وخت کې د اخلاقیونو له خوا تر سخت انتقاد لاندې ونیول شوه. حتی ملګرو انټروپولوجستانو یې هم (په خپل فکر) د ناقص میټودولوجۍ له امله پرې انتقادونه وکړل، خو هغه له خپل اختیار لرونکي نظر نه هیڅ وانه وښته او د جنګد پلویانو د نظر په ضد ټینګه پاتې شوه. په ۱۹۴۰ کې یې د انسان د آزادې ارادې په اړه په خپلې یوې لیکنې کې له سره بیان کړ چې نوم یې دي ((جنګ یوازې یوه اختراع ده – نه بیالوجیکي ضرورت.))

دغې موضوع چې جنګ باید یوازې یوه اختراع وګڼلی شي د انټروپولوجستانو نوی نسل وهڅوه چې ډېرې لومړنۍ ټولنې چې لا هم په خاص ډول د سهیلي امریکې باراني ځنګل او نیوګیني په لوړه سطح پاېي دي د شواهدو لپاره تر کتنې لاندې ونیسي، چې دوی څنګه جنګ کوي، یا یې نه کوي. د سلوک ساحه چې وموندل شوه، خورا پراخه وه له قوي تشدد حال نه لکه د برازیل د یانومامی (Yanomami) خلکو په مینځ کې او نزدې پوره ارام حال نه لکه د مالیزیا د سیمای (Semai) خلکو په مینځ کې. ددغو خلکو جنګي تمرینونه له طبیعي نظر نه ډېر د توجه وړ دي، په تېره د دوی د نښتو په سمبول او دود دستور کې، چې دهغو له مخې نښته یا جګړه یا په ډېرې لږې وژنې سره، یا په هیڅ وژنې سره پای ته رسېږي. دغه احتیاط چې چیرته یې رعایت کېږي، ددغه نظر ملاتړ کوي چې زمونږ په تېرو شویو کې هغومره تشدد نه و، لکه په مونږ کې چې دی او دا چې جنګ زمونږ په جین (gene ارثي عامل چې د کروموزومو په واسطه منتقل کېږي) کې نه دی او مونږ په خپله رښتیا معقولې طریقې غوره کولی شو.

له بده مرغه دا هیڅ یقیني نه ده، چې ددغو پاتې شویو ټولنو خلک به لومړنیان یا بدوي وي، یا دا چې ددوی د جنګ طریقې زموږ د تېرو شویو د عمومي بهیر تمثیل کوي غالب انټروپولوجیکي نظر دادی چې د لیرې ځنګلونو او غرو خلک د مطابقت یا سازش (Adaptation) د اوږدې مودې پروسې مغلوبان دي. دوی د انټروپولوجۍ په ژبه هغه خلک دي چې د ښو ملکونو د نیولو په مسابقه کې څنډې ته شوي دي (Marginalized) او موږ باید د هغو ننداره ییز جنګي عادتونه چې له خونړي جنګ نه مخ اړوي د دوی د جنګیالیو د ناکامۍ انعکاس وګڼو، نه د صنایع شوي اجتماعي هوښیارۍ شواهد.

زه مجبور یم ووایم چې زه په خپله د څنډې کېدلو د تیورۍ نتیجه منم خو زړه نا زړه. د وخت په تېرېدلو سره جنګ نور هم بد شوی دی، خو د هغه د محدود کولو اخلاق هم کله کله پوره غایب وو. موږ پوهېږو چې د سراسري جنګ په وخت کې عنعنیز یا دیني تحریمونه (Taboos) هم وو، چې د شکر ځای دی د قانون په دود یې په پراخ ډول رعایت کېده، چې هغه د بې دفاعو، ښځو، ماشومانو، زړو، ناروغانو، زخمیانو او د هغو د وژنې پر ضد و، چې پالنه یې کوله. زه نه شم ویلی چې دغه موانع د انسان په طبیعت کې ژورې ریښې نه لري او زه قانع یم چې د پاتې شویو ټولنو دغه سمبولیک او جنګي عادتونه زموږ لپاره د جنګ پوهنې په موضوع کې اهمیت لري، سره له دې هم موږ باید په یاد ولرو چې ځینې وخت نښته په څرګند ډول قصدي وه. هغه څه وخت و؟ د انسان شتون په ډېرې اوږدې مودې کې، نه ډېر پخوا که موږ د مځکې په سر د ژوند دغه اوسنی پړاو د کنګل د په شا کېدلو وروستۍ دوره وګڼو، موږ له هغه وروسته دغه په دولس زره کلونه دوره وویشو، چې انسان په لنډه دوره کې د

ښکاري په شان او لا وروسته په اوږدې مودې کې د نورو وسیلو پـه مونـدلو سره ژوند کولی شو.

دا سمه نه ده چې فکر وشي چې حشره وژونکي او نبات وژونکي عوامل د وحشي ژوند غټ له مینځ نه وړونکي وو. دا ښکارو، چې په معتدلو سیمو کې یې لویې رمې او ډېرغټ حیوانان له مینځ نه یووړل او هغه هم په دغسې موثر ډول چې انسان مجبور شو اول اهلي شوي حیوانان وساتي او بیا د خپل خوراک لپاره بوټي وکري. بیا هم مالداري او کرنه لکه څنګه چې مونږ ځانله مبارکي وایو، د انسان لپاره څرګند پرمختګ نه و. د هغو انکشاف هم د سخت ضرورت او هم د په شاتګ علامه وه. د یوه پوونده ژوند د بزګر له ژوند نه ډېر صحي او خوښ و او تر هغو چې وحشي یا سارایي ژوند موجود و، شتمن هم و.

شاید ډېر ارام هم ښکاري ډلې هغه وخت چې رمې لږې شوې، مجبورې وې، د سیمې پرسر په خپلو کې وجنګیږي، خو څنګه چې ډېر حیواني ډولونه، د بېلګې په ډول، په شمالي امریکې کې اس، پخوا لـه دې چې موجودې سیمې د خلکو شي، ډېر احتمال لري چې ښکاریانو به هجرت کړی وي، ددې لپاره چې نوی ښکار ومومي نظر دېته چې پـه موجودو خالي شویو سیمو کې سره وجنګیږي. دا یقیني ده چې د ډېرې وروسته دورې د ښکاریانو پـه مینځ کـې د جنګ تمرین نظر د هغوی شمېرته نور هم کم و. مبهم هم و چې نه شیکېدلی پـه قانع کېدونکي ډول په یوه یا بل راز پرې بحث وشي.

خو لس زره کاله دمخه په معتدلې نړۍ کې پـه سین لرونکو درو کې او د نورو اوبو سرچینو ته نزدې د کرنیزو ټولنو هسکېدنې ښکاري ټولنې له یوې نوې

او هڅونکې موقع سره مخ کړي. ښکاريان چې د ماهي لـه غوښې سره عـادي وو، شايد په اول وخت کې يې د بزګر له فصلونو سره علاقـه نـه وي ښـوولې. د هغـو پسونه او څاروي (غويه، غوا، خوسکي) به ورته اسانه غوښه ښکاره شوې وي. مونږ به دغه نتيجه د کرنيزو ځايونو دلومړيو دفاعي تاسيسـاتو لـه ظهـور نـه تـر لاسـه کړو.د بېلګې په ډول د اوسني اسراييـل د جريکـو (Jericho) ارکيـالوجۍ ښـوولې چې هغه ټولنه چې د يوې دايمي چينې شاوخوا ميشـته شـوې وه شـاوخوا يـې يـو دېوال درولی، خندق يې کښلی او د ساتنې لپاره يې له زېږدې نه تر اته زره کالـه دمخه يو برج جوړ کړی و. يوازې د شاوخوا شاړو ميرو نه حملـو بـه دوی اړکـړي وي چې دغسې ډېر لګښتي او وخت ضايع کوونکي کارته ملا وتړي. نورو ټولنو په مصر او بين النهرين کې کرنې ته په اسانه مخه وکړه. ښکاري چې د نيـل د وادي مصريان، چې په دواړو خواووکې په ژورو ميرو سره محـاط وو، پـه شـمال کـې پـه دلتا (delta، مصب) او په سهيل کې په لويو څړوبيو سره خوندي او مامون وو، تر زېږدې دمخه د ۲۰۰۰ په شاوخوا کې له نظـامي ګـواښ سره مـخ شـوي نـه وو. پـه نتيجه کې د هغـوی مـدنيت لـه اول نـه د جنګيـاليو تـر اثـر لانـدې نـه، بلکـې د روحانيانو تر نفوذ لاندې شوی و، چې له هغو څخه يې واک تـر لاسـه کـړی و، پـه دې عقيده چې خدايګوټو ته چې کلني سيلاوونه تنظيموي، شفاعت وکړي.

د بين‌النهرين مدنيت هم په اول سر کې مذهب واکی (Theocratic) و، چې ساحه يې په اوسني عراق کې د دجلې او فـرات سـينونو پـه ميـنځ کـې پرتـه ده. روحاني ـ پاچايان يې موظف وو، چې هر کال د اوبو سيلاوونه تنظـيم کـړي او پـه نهرونو کې يې په کرنيزو مځکو وويشي. خو د بين‌النهرين طبيعـي دفـاع د مصرـ له دفاع څخـه ضـعيفه وه او پـه اسـانۍ سره لـه دښـتو او نـزدې غرونـو نـه پـرې

بریدونه کېدل او دا په دغسې حال کې وو، چې د هر کال د ویلې شویو واورو اوبو چې د مصر د نیل دسیلاوله اوبونه ډېرې سستې وې، لانجې پیدا کولې او فیصلېې ضروري کولې.

نو دا د پوره پوهاوي وړده، چې په داسې حال کې چې د مصرـ ارکیالوجي مونږ ته د یوې اوږدې مودې لپاره د ارامې پاچایۍ قیصه کوي د بین‌النهرین دا ان له زېږدې نه درې زره کاله دمخه د نظامي سیستم د انکشاف حکایه کوي، هم په لیکنو او هم په حصارونو او داسې هم د فلزي الو او وسلو په ظهور کې. د سیلاونو د میدان واړه ښارونه په خپلو کې سره جنګېدل، خو دا چې په څنګه منظم ډول مالومه نه ده. البته دا څرګنده ده چې نښتې استحکام ته منتهي کېدلې چې د هغو له امله د قدرت مرکزونه سره یو ځای کېدل په عین حال کې چې د وسلو سیستم په خاص ډول چې اسونو سره کشیدونکې جنګي بګۍ (Chariot) تر انکشاف لاندې وې، د بین‌النهرین نظامي کولتور دیرغلیز جنګ په فکر شروع وکړه.

د اوروک (Uruk) د ښارواکمن ګلګه مش (Gilgamesh) تاریخي حماسه د تاریخ د لومړنیو اسنادو له ډلې څخه وه، چې اټکل له زېږدې نه ۲۷۰۰ کاله دمخه لیکل شوې، او هغه بې له شک نه د یرغلیز جنګ نظامي نښتې قیصه ده. یوازې زر کاله وروسته له زېږدې نه ۱۳۰۰ کاله دمخه د اروک پاچایي ځای د اثور (Assur) یا اسیریه (Assyria) پاچایي ونیوه او هغه په رښتیا چې یوه نظامي امپراتوري وه. اثوریان دغه وخت له دغه پړاونه اوښتي وو، چې له خپلو پولو نه له دښتو او غرو څخه د وحشيـ بریدګرو یرغلونه په شاووهي او په خپله په دښمنانو بریدونه وکړي. دا دوی وو چې د تاریخ د لومړنۍ پېژندل شوی پوځ یې

تنظيم کړ، چې د متخصصانو، انجينرانو، لوجستيکي سرتېرو او داسې هم بګۍ والو او پليو سرتېرو ترکيب و.

د جنګ له سرچينونه واوښتو. جنګ اوس د ژونديو واقعيت او هغه د يو بل نوي واقعيت يانې دولت وظيفه وه. د جنګ او دولت تر مينځ څه اړيکې دي؟ حتمي ده چې دولتونه بايد جنګونه وکړي؟ دا زما د بل ليکچر موضوع ده.

# درېيم څپرکی

## جنګ او دولت

((جنګ دولت رامينځ ته کړاو دولت جنګ کوي.)) دا دغسې يوه وينا ده چې د سياسي پوهو ټول زده کوونکي ورسره آشنا دي. د وينا لومړۍ برخه به په وګړو کې ګروبړ پيدا نه کړي. دوی به ووايي چې دولت سرچينې دوخت په غبار کې ليدل کېدلی نه شي. د وينا بله نيمايي چې د دولت غټه دنده جنګ کول دي. ممکن د حيرانۍ او شايد د اعتراض لامل شي. په مخکينيو ليکچرونو کې مې د جنګ سرچينېبيان کړې او خبره مې دېته ورسوله چې د جګړې تکامل څنګه په ټولنيزو ډلو او ملي دولت په انکشاف پورې تړلې دی. اوس به ددولت په رول اوږد وغږېږم.

دا به تناقص وي چې وويل شي چې هغه دولت چې عصري اروپايان او شمالي امريکايان ورسره آشنا دي يوه خير رسونکې يا ښيګڼيزه موسسه ده، نه جنګيالۍ. هغه د ښوونځي او پوهنتوني سيستم د موسسو، روغتيايي خدمت او د اجتماعي مصونيت په تهيه کولو سره روزنه کوي، روغتيا پالنه کوي او خواړه برابروي او دغسې نور څېزونه کوي. دا يو ورکوونکی واحد دی، نه اخيستونکی او له هغو

دولتونو څخه په څرګند اختلاف چې په نولسمې پېړۍ کې وو او خلکو هغه په عمده ډول له دې امله پېژندل چې د هغو زامن يې په پوځ کې نيول. نن ورځې ملي دولت د ټول هوساينې يا ښېګنې (Welfare) دولت دی او پرهغه برسېره نور. نن ورځ چې په مدني خلکو کې دولتي دندې د لانجو لامل کېږي لـه دې امله ده چې دولت بايد څومره ورکړي؛ خو چې ورېې کړي، بايد وايخلي او ټول ماليه ورکوونکي لـه خپلو عايدوڅخه د ماليـاتو لـه ورکولـو نـه سر ټکـوي. نـو د مالياتو په اړه د دولت صلاحيت تر پوښتنې لاندې نيول کېږي، پـه خـاص ډول د ډېرو لږو افراطي آزادۍ پالو (Libertarians) لـه خـوا. لـوی اکثريـت د ماليـاتو سيستم د ټولنې د ښېګنې لپاره منلی دی. يوازې دغه موضوع لانجه پيدا کـوي، چې که دولتي لګښت د فرد په خپلواکۍ، ځان بسيا توب او انتخاب باندې ناوړه اغيزه لري.

د پالونکي دولت له خوا د ناروغانو، زړو او خوارانو پـاللو پـه اړه رضايت عـام دی، خو د هغو پالنه چې په خپلو ځانونو باندې د مصيبت په راوړلو مظنـون دي، رضايت زياتره ښه نه دی.دغه لانجه کله اخلاقي سطحې ته ورځي، چې ايا دولت بايد د فرد دغه حق چې په خپله انتخاب وکړي تر لاسه کړي؟ ايا مـالي سيسـتم بايد په دغه ډول تنظيم نه شي چې فرد ته کافي مالي آزادي پاتې وي چې فيصـله وکړي خپل ماشوم کوم ښوونځي ته واستوي، کوم معالج ډاکټر ته لاړ شي او څـه ډول تقاعد تر لاسه کړي؟ خو موضوع چې د بحـث پـه هـره سـطح کـې وي داده چې دولت بايـد تهيـه کـړي، يـا تهيـه نـه کـړي، چـې خلـک پـه خپلـه دولـت تـه خدمتونه وکړي او هغه اخيستل وکړي؟ بې له دې چې هـيڅ ورکـړي. دغـه فکـر چې خلک دې په خپله دولت ته څومره خدمتونه وکړياو لا دغه تـورت فکـر چـې

هغه باید تر لاسه کړي بې له دې چې وریې کړي، بس نه راولاړېږي. بیاهم دولت نژدې وختو پورې دداخلي قانون اونظم د خوندي کولو له نامنظم خدمتونو له تهیه کولو نه پرته نور څه نه کول په داسې حال کې چې ځینې وختونه یې ډېرڅه اخیستل. په ۱۷۹۳ کې دفرانسې ولسمشرۍ داسې قانونونه وایستل چې په هغو سره یې له هر ځوان یا ځوانې نه وغوښتل چې ځان ددولت خدمت ته وسپاري او دغه انکشاف په قوت سره عملي کېده چې هر نارینه ځوان دې په پوځ کې خدمت وکړي.

چیرته چې د فرانسې دولت مخکښې کوله نور دولتونه یې په لار تلل. په نتیجه کې زیاتره اروپایي دولتونه د نولسمې پېړۍ ترپایه ددغسې پیاوړو پوځونو خاوندان شول چې له خپلو نارینه ځوانانو نه خدمتونه تر لاسه کړي چې له امله یې دولتونه د جنګ کولو بالقوه موسسې شوې او فکر کېده، چې لږ څه نور هم.

دغه پړاو په تاریخ کې لږترلږه په لبرل دموکرات دولت کې پای ته رسېدلی دی. له ۱۹۴۵ نه وروسته د عامه نظامي خدمت لپاره ددولت تقاضا ترک شوې او دغه میل په ۱۹۸۹ کې د برلین دېوال په نړېدلو سره نور هم پیاوړی شوی دی. د امریکا متحد دولتونو او برتانیې د خپل دفاع لپاره په وړو رضا کارو ځواکونو ډډه کړې او هغوی د نورو دولتونو لپاره نمونه شوي دي.

فرانسې څرګنده کړې چې په وروستۍ لسیزې کې به د جلب سیستم ترک کړي. دا هغه هېواد دی چې دغه سیستم یې په عصري شکل سره ایستلی او د اوږدې مودې په بهیر کې یې ټینګار کاوه چې یوازې په نظامي یونیفورم کې ولسمشرۍ ته خدمت کول د هغه ځوانانو ته مدني ښېګنې ورکول کېدلی شي.

جرمني لا هم ټينګار کوي چې د جلب سيستم بايد همدغسې پاتې وي، ځکه چې نظامي خدمت ته هغه د ځوانانو جلب ددې تضمين کوي چې وسله وال ځواکونه به يې د موکراسۍ ته وفاپال پاتې وي.

دغه فکر په سطحي ډول د جرمني د تاريخ په نظر کې نيولو سره د پوهاوي وړ دی. د وجداني اعتراض لپاره د هغه دحق درک کولو ددغه سخاوت د منلو مانا دا کېږي چې دغه خدمت په واقع کې په رضا سره دی. حتی روسيه چې د پېړيو په بهير کې يې لوی جلبي پوځونه ساتلي دي، اوس د رضا کار پوځ طرز د غوره کولو په اړه خبرې کوي. په ټولې اروپا کې او د امريکې په لويه وچه کې پوځونه مخ په مړاوي کېدلو دي. يوازې په آسيا او افريقې کې لوی يوځونه لاهم ساتل کېږي او هغه زياتره ددکتاتوري رجيمونو له خوا د ځان ساتنې لپاره دوسيلې په توګه. چيرته چې رايه ورکوونکي يا موکلان حکومت کوي، ډېری يې خپل رضايت د دولت له دغه حق ته سپموي چې د دوی زامن سرتېري کړي، دغه انکشاف دغه بحث ته نه يوازې يو څرګند نوی بعد ورکوي چې د دولت غټ رول جنګ کول دي. هغه ددغې فرضيې منطق هم تر پوښتنې لاندې نيسي چې دولت او د جنګ کول په يوې بې ساري ان نه بېلېدونکې اړيکې سره تړل شوي دي. عصري لبرل دموکرات دولت تر هغه قدرت نه چې سلف دولت ته يې ورکول کېده او مسوليتونه يې په غاړه اچول کېدل له ډېر قدرت نه کار اخلي او ډېر مسوليتونه مني. که هغه اوس خپلې نظامي دندې د خپلو هغو دندو تابع ګرزوي چې د ټول هوسانې، پوهنې، روغتيا پالنې او زياتره خپلو خلکو ته د کورونو په تهيه کولو کې تر سره کوي، نه ښايي مونږ په هغې تاريخي مخينې له

سره نظر وکړو چې د هغې له مخې جنګ کول تل ددولت په مهمو فعالیتونو پورې تړلي وو؟

په برابره اندازه له هغو یو نیم سل هېوادونو څخه چې ډېریې له ۱۹۴۵ څخه خپلواک شوي دي، په داسې حال کې چې تر هغه دمخه پنځوس خپلواک دولتونو شتون درلود، د جنګ کولو ټینګ ظرفیت نشي، خو له هغه نه پرته نزدې هیڅ هغه دنده نه ترسره کوي، چې له دولت نه یې هیله کېږي. په لنډه توګه ددوی په دې ددولت دنامه مستحق کېږي، چې دوی جنګي ډول دولتونه دي. څنګه چې دولت ډېر عصري جنګونه هیڅ نه کوي، ایا نه شایي مونږ په دغه فکر له سره نظر وکړو چې دا جنګ کول دي چې دولتونه تعریفوي؟

تاریخ په دې اړه ډېر شواهد ورکوي چې دغه فکر دمنلو دی چې د دولتونو حتمي برخلیک جنګ کول وو. په دې اړه به یوه غټه بېلګه وړاندې کړم. د مصر د لومړنیو فرعونیانو د سین پاچایي شاید، یا احتمال لري، په زور سره یو موټیشوي وي. خو وروسته له هغه چې متحده شوه له مخزېږدې۳۰۰۰ نه تر ۱۷۰۰ پورې نزدې یو نیم زر کاله له ارامۍ نه برخمنه وه. ددې لپاره ځانګړي جغرافیوي علتونه دي. دا ډېره ګوښه پاچایي وه، چې په آسانۍ سره پرې یرغل نه شو کېدلی او له دې امله چې دنیل سین ورته شتمني راوړله مادي علت یې نه لاره چې په خپله په نورو یرغل وکړي. په اقتصادي ډګر کې شاید د ژوندي پاتې کېدلو په سطح کې له لاس نه تر خولې ژوند باندې قناعت کېده، لکه چې زیاتره په نورو محیطي لحاظ مساعدو ټولنو کې هم کېده، چې د پولي‌نیشیا (Polynesia) ټاپوګان یې یوه غټه بېلګه وه. خو د مصریانو ته دغسې انتخاب میسر نه و. مصریانو د خدای – پاچایي په واکمنۍ کې دغسې لارې وایستلې

چې په هغو سره د پولي‌نیشیاد طرحې لـه غـوره کولونـه ډډه وکړي، چې خپل اضافي نفوس يې په تشدد سره کډوال کېدلو ته اړ کول. مصريانو د هغـه پرځـای دغسې وسیلې پیدا کړې، چې د هغو له لارې کرنیزحاصل ډېر کـړي او پـه عـین حال کې هغه انرجي چې دننه په جګړو کې ولګوي د هنري لويو آثارو پـه رامیـنځ ته کولـو کـې ولګـول شي، چـې هغـه لـه ټولـو هغـو هـنري آثـارو چـې پـه لرغـونې مديتراني کې رامینځ ته شوي دي، سیالي وکړي، بلکې له هغو نـه پـه سـتر تـوب کـې واوړي او هغـه تـر اوسـه هـم د نـړۍ عجایـب شـمېرل کېـږي. د فرعونیـانو دواکمنۍ په وخت کې د عادي مصري ژونـد هغسـې نـه و، چـې مـا او تـا تـه بـه مناسب و. هغه وخت ټولنه په څرګند ډول آزاده نه وه او فرد ته چنـدان ارزښـت نه ورکول کېده، که څه هم هغه بـه ډېـر شـتمن و. بیـا هـم دفرعونیـانو د وخـت مصر دسیاسي پوهې په اصطلاح د تناقض و چې په ډېره لوړه سطحه کې کلتـوري فعالیتونه کېدل او مصريان دېته اړ نه وو، چې پـه هغـومره اوږدې مـودېکې چـې اروپا عیسوي شوې ده، جنګ ته لاس واچوي. یوازې هغه وخت چـې یرغلګـرو پـه دې پیل وکړ چې دنیل په شمال کې نفوذ وکړي په شاوخوا مخزېږدي ۱۹۰۰ کې د مصـر پاچـايي خپـل معـماري فعالیتونـه ودرول. بانـدنیانو چـې د جنګـي بګیـو (Chariot) تکنالوجي تر لاسه کـړه او لـه مخزېـږدي۱٦۰۰ نـه وروسـته د نیـل پـه ښکته برخو کې ښکاره شول، فرعونیان په پایکې اړ شول چې د جنګ مشران شي.

په دې ډول دولت له جنګي کلتور نه پرته حتی بې د دايمي پوځ له شتون نـه يو پوره عملي سیاسي واحد دی. ایا دغه تناقض پـه سرچپـه ډول عمـلي دی؟ ایـا پوځ د دولت د نه شتون په حال کـې رامیـنځ تـه کېـدلی شي؟ پـه ډېـرې آسـانۍ سره، که مونږ د منځنۍ آسیا د پراخو بوټـو لرونکـو وچـو دښـتو (Steppe) د اس

لرونکو ولسونو تاریخ په نظر کې ونیسو. اس تر څلور زره کاله دمخه پورې په زیاته اندازه د خوړلو لپاره ساتل کیده. له هغه وروسته د تکاملي تحول (Mutation) یا د انتخابي روزنې له لارې د اسانو دغسې ډولونه را څرګند شول چې تر دې حده پیاوړي وو، چې بګۍ کش کړي او زر وروسته انسان پرې سپریدلی وشي. د اهلي شوي اس نظامي ارزښت زر وپېژندل شو. جنګیالیو ارستوکراتانو په جنګي بګیو سره په ټول منځنۍ ختیځ، چین او اروپایي مدیترانیکې قدرت تر لاسه کړ. دوی دغه کار په مخزیږدي دوه زره کلونو کې تر هغه وخت چې په عین مهال مخزیږدي ۲۰۰۰ کاله له وسپنې نه جوړو وسلو تر څرګندیدلو پورې په لاس کې ونیو، اس سورو د مفرغ پربنسټ نظامي انحصار قوت مات کړ. بیا نورو انکشافاتو، په عمده ډول په اروپا کې، ددایمي پوځونو اوپه چین کې ستراتیجیکي حصارونو، د اس جنګیالیان بېرته ورشوګانو ته په شا کړل، له زر کلونونه زیات هلته پاتې شول. په دغې سیمې کې اس شاید د لومړي ځل لپاره اهلي شوی وي. په لویدیځې اروپا کې دوی هغه وخت ښکاره شول چې د هونانو اتیلا (Attila) په زېږدي پنځمې پېړۍ کې د روم په امپراتورۍ یرغل وکړ. د منځنیو پېړیو په اولو کلونو کې څو ځلې بېرته راغلل، خو دغه وخت د نا ارامه کوونکي ترټني په څېر، نه دتخریبي خطر په توګه. خو په دیارلسمې پېړۍ کې تر دغه وخت نه اوریدل شوېاس سواره خلک د چنګیز خان مغول، د منځنۍ آسیا د بوټو له سمندر نه ښکاره شول او په میشتو مدنیتونو باندې یې یرغلونه او فتوحات وکړل، دغسې فتوحات چې تر دغه وخت پورې هیڅ نه ووشوي. چینګیز خان، زامنو او لمسیانو یې د یوې پېړۍ په بهیر کې د اسلامي خلافت او چین ځواکونه نسکور کړل او دغسې امپراتوري یې د لاس لاندې ونیوله چې له ارام سمندرنه تر تور سمندرګي، له سایبیریا نه تر همالیې

او د پارس له خليج نه تر جاپان پورې غزېدلې وه. د مغولي فتوحات تاريخپوهانو د لاندې شويو ولسونوپه تابع کولو کې د مغولو د نظامي پوهې او مهارت په اړه ډېر څه ليکلي دي.په دېکې هيڅ شک نشته چې دوی کوم هغه اداري طرزونه چې وموندل ورته يې دوام ورکړ او امنيت يې پکې خوندي کړ، خو چې وويل شي دوی سياسي خلک وو او امپراتوري يې يو دولت و. ماته بې مانا ښکاري. د مغولو فتحې يوازې يو مطلب درلود او هغه دا چې په زور سره ماليات تر لاسه کړي، ددې لپاره چې د پوونده جنګياليو په شان په شتمنۍ سره ژوند وکړي، نه په غريبۍ سره.

دوی په خپل هوډ چې  اس سواره پاتې وي دغومره ټينګ وو، چې په چين کې پراخې سيمې د څرېدونکو حيواناتو د څرېدلو لپاره بېرته په ورشوګانو بدلې شوې او له ملکيت نه محروم شوي  بزګران قتل عام شول. په خپله چينګيز ويلي وو، چې  په ژوندانه کې تر ټولو ښه خوند دادی چې ((دښمن پسې واخلې، لاندې يې کړې، شتمني يې چور کړې، په اس يې سپورشې اومېرمنې يې په وير پرېږدې او له جسمونو يې د کاليو په شان کار واخلې.)) بيانو دا عجبه نه ښکاري چې د چنګېز دغه ډول نړۍ ليد په نظر کې نيولو سره د مغولو د پوهانو، سوچوالو، هنرمنو، يا متشبثانو په اړه ليکنې نه شته او دا چې دوی په خپل وخت کې په ټولېنړۍ کې تر ټولو پياوړي وو، د دوی له واکمنۍ سره هيڅ سياسي، کلتوري ياعقلاني کارنامه نه ليدله کېږي. د دوی ټولنې د هغه چا لپاره ځای نه لاره، چې جنګيالي نه وو او دوی تر پايه پورې هغسې په اس سپور پوځ پاتې شو، لکه په اوله کې چې و.

که موږ ومنو چې تاریخ دولتونه هم بې له منظم پوځ څخه او پوځونه بې له دولت څخه راښيي موږ بیا دغې فرضیې ته تازه نظر اچولی شو، چې جنګ په ځانګړي توګه ددولت دنده ده او دولتونه لزوماً جنګ کوونکې موسسې دي. د فرضیې لومړنۍ برخه په یقین سره رد کېدلی شي. جنګ په څرګند ډول دولتي فعالیت نه دی؛ نه پخوا و او نه اوس لکه چې د بېلګې په ډول د بالقاناتونا دولتي جنګونه یې په دردناک ډول واضح کوي.

د فرضیې دویمه برخه لانجمنه ده. دولت باید په واضح ډول په داخل کې د ارامۍ اقل حد خوندي کړي، ددې لپاره چې هغو ته د منلو وړ وي، چې تر واک لاندې یې ژوند کوي. داسې هم هغه باید په برابره اندازه د باندنیو یرغلونو پروړاندې د خپلو پولو ساتنه وکړي. نو ایا دغه دوه مسولیتونه هغه په اساسي ډول یو نظامي واحد تعریفوي؟

هغه دولتونه چې د تاریخ په کتابونو کې ډېریادېږي – د لرغوني یونان، د روم ولسمشري او له هغو نه وروسته اسلامي خلافت او چیني امپراتوري ډېر نظامي دولتونه وو. د یونان ښاري دولتونه او وروسته دروم ولسمشري او امپراتوري د پاتې کېدلو په مقصد جنګ قبول کړاو په ټینګه یې وکړ. خو چیني مدنیت له اول نه جنګ کولو ته په ښه سترګه نه کتل لکه چې د کنفیوسیس (Confucius) دغه لنډه وینا ښکاره کوي چې ((د عقل خاوند خپل مقصد بې له تشدد نه تر لاسه کوي.)) په داسې حال کې چې د عیسویت او اسلام موحدو دینونو د اروپا او منځني ختیځ خلکو ته، چې منلي یې وو، ارشاد کاوه چې د خدای تعالی د بندګانو د وژل کېدلو په اخلاق ناراضي اوسي.

اسلام چې په لوېدیځ کې ښه پېژندل شوی نه دی، په اول سرکې یو نیونکی مذهب و. خو د هغه سپېڅلی کتاب د هغو پرورانديې تشدد منع کړی و، چې ورته تسلیم کېدل، ددې لپاره چې غیر معتقدان چې اسلامي واکمنو بـه تسلیم کېدل، هم د خپل دین شعایر په آزاد ډول ترسره کړي او هم دهغو له دښمنانونه خوندي شي. لـه لومړنیـو عیسـویانو نـه ډېـرو یـې انجیـل (New Testament) د تشدد پرخلاف د سوله غوښتونکي[11] (Pacifist) کتاب باله، که څـه هـم لومړنیـو عیسوي دولتونو په عمل کې هغه بـل شـان ګانـه. دغـه فکـر چـې لـس ارشـادات (Ten Commandments) باید لړترلږه د عیسوي خلکو تر میـنځ اړیکـي تنظـیم کړي، د یو لړمفصلو حقوقي لایحو په شکل واړول شول.

د هغوله مخې د عیسوي وینـې د جـبران لپـاره توبـه وټاکـل شـوه: څلوېښـت ورځې توبه د یوه عیسوي د ټپي کولو په بـدل کـې، د هیسـټنګز (Hastings) لـه فتحې نه وروسته د رومي اشراف (Knights) لـه خـوا او د عیسـوي د دوبـې پـه موسمونو کې ایډونټ (Advent) او لنټ (Lent) کې له جنګ کولو نه ډده کـول. اسلام تر دېنه لا د مخه ولاړ. په جنګ کې د مسلمانانو په مینځ کـې د حضـرت محمد (ص) ارشادات دغومره ټینګ ونیول شول چـې د لـومړۍ دورې د خلافـت په کورني جنګ کې د جنګي خواوو، د کاپرو غلامـان اجـیران نیـول چـې د هغـو لپاره وجنګېږي.

تر هغو چې دولتونو لوړ واک مقام ته، روحانیانو ته او دیـن تـه چـې دوی یـې تبلیغ کاوه خاص احترام کاوه، دوی له دغه اخلاقي مشکل نه چې په تشـدد کـې ښکیل ویـبچ وو. څنګـه چـې ددنیـایي واک سرچینـه خـدای تعـالی و او دهغـه روحانیانو ښوونه کوله، چې له هغه نه څنګه کـار واخیسـتل شي یـا وانـه خیسـتل

شي دولتونه یا لږترلږه د هغو سروالان مجبور نه وو، چې په دې اړه غور وکړي چې له تشدد نه کار اخیستل د دوی اصلي دنده ده او مقررو یې دغه موضوع د دوی له لاس نه وایستله او مشروع دولتونه یې په اخلاقي لحاظ لاندې سطح ته کوز کړل. دغو ټولو څیزونو لږترلږه په لوېدیځې اروپا کې ددیني اصلاحاتو (Reformation) په دوره کې د عیسویت په ویشل کېدلو سره تغیر وموند. په دغه وخت کې په خپله مذهبي صلاحیت د نښتو عامل وګرزېد. له هغه وروسته پروټستاني دولتونو د عالمي کلیسا دغه حق نه مانه چې د دوی په اعمالو قضاوت وکړي. له بلې خوا کاتولیکي دولتونو دغه انکار د دوی پر ضد د جنګ دلیل ګاڼه. نتیجه ددېرش کلونو جنګ و، چې تر هغه وخته د اروپا په تاریخ کې ترټولو بد جنګ و. په دغه جنګ کې، د اولسمې پیړۍ په زیاتره موده کې منځنۍ اروپا ډېره ورانه شوه او د جرمني ویونکو خلکو درېیمه به وژل شوې وي. دعالمي او لوړ واک د صلاحیت سقوط پایلو د یوه نوي حقوقي بنسټ دموندلو لپاره څېړنه وهڅوله، چې د هغې له مخې د دولتونو ترمینځ نوې اړیکې حقوقي بنسټ کېدلی وشي. دغه بنسټ د بین‌المللي حقوقپانو په نوي تخصص سره وموندل شو. دوی دغه نظر وړاندې کړ، چې څنګه چې دولتونه سره جوړه نه شي کولی، چې د لوړې واکمنه سرچینه چیرېده هر یوه باید واکمني ولري او دوی دې دواکمنیو په شان د خلپواکو اخلاقي واحدونو، یا ښه ده وویل شي، له اخلاق نه دباندې (Amoral) واحد په شان شتون ولري چې هر یو د خپلې ګټې لپاره په څه ډول قضاوت وکړي.

اخلاق ته دبې پروا دولت له ایډیا نه، چې نیکولو ماکیاولي (Niccolo Machiavelli) یې د رنسانس (Renaissance) په پیل کې وړاندوینه

کړې وه، هغه دولت ته فاصله لږه وه چې په قصدي ډول او شاید په اول سر کې د جنګ کولو ماشین و. د فرانسې لومړۍ ولسمشرۍ په اروپا کې بد مثال پرېښود او هغه دا چې د خپل پراخ یرغل لپاره یې دلیل وړاندې کړ او ځان یې په خپله موظف کړ، چې د نورو سیمو ځپل شویو خلکو ته آزادي او برابري خوندي کړي.

په هغه بري سره چې خپل ایډیالوجیکي جنګیې پر مخ بېوه، د پروس (Prussia) نظامي متخصص کارل فان کلازوتز[۱۳](Carl von Clausewitz) یې وهڅوه چې د جنګ دغسې مضره فلسفه راوباسي، چې تر هغه وخت پورې هیڅ نه وه وړاندې شوې. هغه وویل چې جنګ د سیاست له دوام څخه پرته بل څه نه دي. هغه د سیاست لپاره جرمني کلمه (Politik) راوړې ده، چې مطلب یې شاید سیاسي چلند (Policy) وي، خو هر څه چې ده د هغه اصلي مفهوم نا څرګند دی او هغه باید یوازې هغې سیاسي ګټې ته محدود شي، چې په اوله کې په هماغه مفهوم استعمال شوی دی.

په لنډه توګه جنګ (په دې ډول) له اخلاقي ډګرنه دباندې ارزښت څخه آزاد فعالت کېږي. ددې مانا دا کېږي چې سیاست هم همدغسې دی، ځکه چې له تشدد او زور نه کار اخیستل یو دوام لرونکی کار کېږي او پیل یې دخپلو خلکو مجازات وي، چې له حکمونو نه یې سر غړوي. بیانو هیڅ څیز نه شي کولی او نه یې باید وکړي، چې له تشدد نه دولت له خوا د کار اخیستلو حق محدود کړي، بې له دې چې په وړاندې یې له لاپیاوړي تشدد نه کار واخیستل شي.

زه کلازوتز ډېر مضر بولم، په دې چې د هغه سیاسي فلسفه د ټولواک دولت (Totalitarian State) فلسفه تاییدوي. مهمه ده چې دا هم وویل شي چې یوازې دهغه نوم د هټلر په هغې سیاسي وینا کې یاد شوی، چې هغه شپه دمخه هغه وخت ولیکه، چې ده د ۱۹۴۵ کال په اپرېل کې د دولت د خرابیو په مینځ چې ده دغه حال ته رسولی و، د برلین تر مځکه لاندې کلا (Berlin Bunker) کې ځان وواژه.

تر هغه وخته پورې تاریخي پېښو د کلازویتز وینا دوه ځله باطل کړې وه، چې جنګ خپل ځان کله په اخلاقي لحاظ نه وي، په عقل سره په اتومات ډول د دولتي ګټې په نظر کې نیولو سره محدود کوي. لومړی نړۍ وال جنګ په ۱۹۱۸ کې د جرمني واکمنو له کنترول نه ځان خلاص کړ او هغوی یې پرې نه ښودل چې له ملي مصیبت څخه د ژغورنې لپاره د خبرو اترو لار پیدا کړي. خو دا چې د فاتحانو ټولو غوښتنو ته غاړه کښېږدي. تر ۱۹۴۵ پورې د دولت د سروال په توګه د هټلر د سر زورۍ پایله چې ددولت په ګټه د خبرو لار ونیسي په خپله دواکمنۍ اختتام شو. په داسې حال کې چې له اخلاق نه دباندې له دولتي قدرت نه کار اخیستل د هغه ولس په اوږدې مودې کې دیوه تابع ملت حال ته محکوم کړ.

حتی هغه وخت چې کلازوتز متمدن فکر ککړ کاوه چې جنګ څنګه وشي یا څنګه کېدلی شي، د هغه پرخلاف نور فکرونه د ټوکېدلو په حال کې وو. د فرانسې انقلاب او د ناپیلیون امپراتورۍ د نظامي زور زیاتیو په غبرګون کې له ۱۸۱۵ نه وروسته د اروپا لویو دولتونو کوښښ وکړ، چې د اروپا لویې وچې سیستم (Continental System) رامینځ ته کړي، ددې لپاره چې د غړو تر مینځ یې د

جنګ مخه ونیسي. او هغه په دغه ډول وکړي چې واکمني د سولې خوندي کولوته تابع کړي، چې د ټولو ګډ ارزښت دی. دغه سیستم پنځوس کاله وچلېد. ددغې پېړۍ تر پایه پورې د جنګ احیا ته په ښه سترګه نه کتل کېدل. د ۱۸۹۹ کال د هاګ بین‌المللي کانونشن (Hugue Convention) لاسلیک کوونکو نه یوازې دوسله وال کېدلو محدودیت د خپل هدف په توګه ومانه، له ملي واک نه پورته یوه بین‌المللي محکمه یې هم جوړه کړه، په دغه مقصد چې په منځګړتوب یا حکمیت سره د جنګ مخه ونیسي. بل کانونشن په ۱۹۰۷ کې وشو او درېیم یې ۱۹۱۵ ته پلان شوی و.

د هاګ سیستم تر هغو چې له دېرش کاله جنګ نه وروسته د یوه لا ډېر بد جنګ (لومړي نړیوال جنګ) تر سیوري لاندې راغی، خو روحیه یې ژوندۍ پاتې وه. له ۱۹۱۸ نه وروسته حقوقپوهانو دغه موضوع له سرنه ونیوله چې دولتونو تر مینځ اړیکې څنګه تنظیم شي. په داسې حال کې چې له ۱۶۴۸ نه وروسته د هغو سلف دولتي واکمني لومړۍ سطحې ته رسولې وه، اوس نا محدوده واکمني د سولې دښمنه وپېژندل شوه. د امریکې ولسمشر وډرو ولسن (Woodrow Wilson) حتی د جنګ له پای نه د مخه د ملتونو لیګ (League of Nations) وړاندیز وکړ، چې هغه له دغسې لوړ واک نه کار واخلي چې د مذهبي اصلاحاتو په وخت کې له لاس نه وتلی و. داسې هم په ۱۹۲۸ کې د امریکې او فرانسې په تړون سره چې ډېرو ملتونو پکې ګډون وکړ، جنګ یې ((د پالیسۍ د وسیلې په شان)) مردود وګاڼه. هټلر په ۱۹۳۹ کې د ملتونو لیګ او داسې هم د کیلاګ–براینډ تړون (Kellog-Briand Pact) توګه وګڼله، خو هیڅ یو به ورک نه شي. په ۱۹۴۵ کې د ملګرو ملتونو موسسه د موافقې او یوه منشور

له مخې جوړه شوه. دغې موسسې نظامي واکمني ځانله تابع وګرزوله او په خپله جنګيې، له دفاعي حال نه اخوا غیر قانوني اعلام کړ؛ مګر په هغه حال کې چې په خپله یې تصدیق کړی وي.

په نتیجه کې نړۍ اوس هغه بین‌المللي سیستم ته بېرته تللې، چې دولتونو په دې پیل وکړ، چې د موحد دین لوړ قدرت ومني. دولتونه نور نو نظامي واکمني نه لري، لکه هسې چې هغه دولتونه چې د اروپا په سیاسي اتحادیه کې له سیاسي نظر نه واکمني نه لري، که څه هم دغه اتحادیه هغسې چې ډېر ټینګ ملاتړ یې ادعا کوي، په اصل کې د جنګ پر ضد جوړه شوې نه ده. دولتونه اوس ددغسې قدرت تابع دي چې قوت یې تر هغو څخه ډېرپیاوړی دی او په یقین سره دوی د دولتي ګټې یا دسیاسي ضرورت له مخې د جنګ کولو ادعا کولی نه شي.

یو عادي فرد چې شک لري د دولت غړه دنده د هغه په خاطر د جنګ کول دي، په پای کې حتی که له اوږدې مودې نه وروسته هم و، په حق ثابت شو. دغه میراث څنګه د یوه فرد په توګه دهغه ژوند متاثر کړ، زما د راتلونکې موضوع لکچر دی.

# څلورم څپرکی

## جنګ او فرد

ډاکتر جانسن ویلي وو، چې ((هر هغه څوک ځان لوږ حس کوي چې سرتېری نه وي، یا سمندر ته نـه وي تللـی.)) د هغـه وینـا زیـاتره پـه ناسمه توګـه راوړلـه کېږي، په دې ډول چې ((هر څوک  په ځان ویاړي چې ښه سرتېری وي.)) پـه هـر حال مونږ پوهېږو چې د هغـه مطلـب څـه و. دا بـه یـو ډېـر نـادر سـړي وي چې نظامي خدمت یې کړی وي، له هر ډول نه چې وي ځان ښه ونه ګڼي، که څه هـم دټوپک ډز به یې نه وي کړی، چاچې یونیفورم په ځـان کـړی وي، نظـامي تمـرین یې کړی وي، د نظامي ټولنې ډسپلین ته یې غاړه ایښې وي، په خـاص ډول دهغـه وخت په یاد اوزیاتره د وخت په تېرېدلو سره ځان ورته غټ ښکاري.

دا په خاص ډول په برتانیه کې صدق کوي، چـې د عسـکري ټـولي د کښـتۍ ملګرتوب او ترټولو زیات دواړه نظامي واحد ټولنه یې پیاوړې ده. د هغو په بېرتـه یو ځای کېـدلو کـې، چـې پـه دوهـم نړیـوال جنـګ کـې یـې برخـه اخیسـتلې وه، ډېرګډون کوي که څه هم دغه جنګ ښایسته دمخه تېر شـوی دی. د ډي –ډې (D-Day)[۳۷] یرغل په پنځوسمو کالیزو کـې چـې اروپـا یـې آزاده کـړه او هغـه پـه

خاص ډول د ۱۹۴۵ په سولې بدله شوه، بیخي ډېر کسان جلب کړل. د بیخي زیاتو کسانو خوښي او د کورنیو او ملګرو شخصي مبارکۍ یې هم له ځان سره راوړې. هغه ددې لامل شو چې پخواني سرتېري، د سمندروهونکي او هوایي نظامیان په ځان وویاړي، حتی دهغه نسل غړي هم چې د جنګ خاطره یې هېڅ نه لرله. په تېرو لیکچرونو کې د جنګ د سرچینو او د جنګ په کولو کې ددولت له بدلېدونکي رول نه وغږېدم. خو سره له دې هم په جنګ کې د فردونو رول او په دوی باندې د جنګ اثر تر هغه هم ډېره پاملرنه غواړي، چې دادی په دغه څلورم لیکچر کې پرې غږېږم. دا چې په برتانیېکې پخوانیو نظامي خدمتګارو ته په ډېره ښه سترګه کتل کېږي، خاص لاملونه لري. دوی هغه لومړني نارینه او ښځینه وو، چې دماتې مخه یې واړوله، هغه ماته چې په ۱۹۴۰ کې نږدې مالومېده او بیا یې په یو حیوان صفته زورواک باندې پوره بری یقیني کړ. پر هغه سربېره دا دغسې بری و، چې په لومړي نړیوال جنګ کې د انسان په ډېرو تلفاتو سره هم نه وګټل شوی.دغه تلفات په کافي اندازه ویرجن کوونکي وو، نږدې څلور لکه دعملیاتو قرباني، خو دا د هغو نږدې نیمایي وه چې په ۱۹۱۴-۱۹۱۸ کې تلف شوي وو.

پردې برسېره ددغې قربانۍ په ارزښت سره دویرجنو غم رفع شو. ((دوی بېځایه مړه شوي نه دي)) د یوه ځل لپاره د هغو تورو یوه بڼه شوه چې بې مانا نه وه، په داسې حال کې چې برتانویانو په خاصه مودبه طریقه هر هغه فرد په ښه شان یادکړ چې په جنګ کې مړ شوی او په مالوم ډول د نړۍ په ګوټونو کې د جنګ په مرموزو هدیرو کې خښ شوی، چې دا دملت کونډو او یتیمانو لپاره یوه ډاډینه وه. روسان چې نږدې څلور ملیونه یې په نظامي عملیاتو کې له

لاسه ورکړل، دغسې ډاډینه نه لري. د دوی د پخوانیو نظامي کسانو بیا یو ځای کېدل تر اوسه هم هغه نارینه او ښځې ویرجنې کوي، چې د خپلو مېړو یا زامنو نښه لټوي، بې له دې چې یې تر لاسه کړي، چې پنځوس کاله دمخه په سټالین ګراد یا کورسک (Kursk) کې له مینځ نه تللي وو. د جرمنانو د جنګ د نسل قسمت، که څه هم د لږې خواخوږۍ وړ دی، تر ټولو بد دی. سټالین د شوروي اتحاد په خاوره کې د هر ځانګړي جرمن د ګور دورانولو امر وکړ. په شوروي اتحاد کې له څلورملیون جرمنانو نه ډېر یې هلته پرزېدلي وو او هغه جرمنان چې له جنګ نه ژوندي پاتې شوي دي، د بیایوځای کېدلو لپاره دلیل نه لري. دوی داسې څه نه لري چې جشن یې ونیسي او ډېر څه د بې عزتۍ په ګډون لري چې له یاد نه یې وباسي.

سره له دې هم نارینه لویان، چې د هټلر سرتېري وو، له شخصي بې عزتۍ څخه تښتي. دوی په خپل وخت کې وطنپالونکي وو او وطنوال یې د هغه له امله درناوي کوي او دوی لکه چې د دوی دښمنان یې په آزاد ډول مني، په عمومي ډول زړور وو. دوی د انسانانو له هغه زړه سواندۍ څخه استفاده کوي، چې د ټولې شلمې پېړۍ د هغو ځوانانو په اړه یې لري، چې دولتونو یې د دوی د سولې له عادي ژوند نه وایستل، نظامي یونیفورم یې وروا‌غوست او د زیاتره مرګونې دندې د تر سره کولو لپاره یې واستول. د قربانۍ په شان دعادي سرتېري فکر د هر هېواد چې وي او هر ډول جنګ چې وي او په هر دلیل چې وي، زمونږ په کلتور کې ډېر پیاوړی دی. جنګ زمونږ په وخت کې ډېر قربانیان انتخاب کړي، خو یو هم نه هغومره ډېر لکه عادي سرتېري. د قربانۍ لپار دعادي سرتېري ایډیا د تاریخ په ډېرو اوږدو دوروکي زمونږ ډېرو تېرو شویو ته نا اشنا وه. دوی

ته به د پوهاوي وړنه وه، چې ډاکټر جانسن د کومو دليلونو له مخې سوچ کاوه چې نظامي يا سمندري سرتېري انسانان په دې فکر کړل چې ځان لا ښه وګڼي. مونږ به داسې وګڼو چې هغه سرتېري يا سمندري سرتېري دغسې يو فرد درک کړ او هغه شايد افسران دغسې ګڼل چې په خپله رضايې د ټينګ انظباطي خدمت دننه د مرګ خطر منلی وي.د اتلسمې پېړۍ د سرې کرتۍ او شنه جاکټ پوځيانو به د شفرونو ماتوونکي په بې رحمۍ سره په قمچينو وهل او له قانون نه سر غړوونکو ته به يې په زور او ټينګه جزا ورکول کېده، دوهلو، چور کولو او جنسي تېري په ګډون. د هسپانوي هاليند خلکو ته د اتيا کلونو د جنګ په موده کې‌او جرمنيانو ته ددېرش کلونو د جنګ په وخت او فرانسويانو ته دسل کالو د جنګ په بهير کې به د پوځ ښکاره کېدل د چور او په ښځو د تېري علامه ګڼل کېدله، د منځنيو پېړيو او رنسانس اروپا کې سرتېري يوه کرغېړنه څېره وه، چې د بروګيل (Breugel) او کالات انځورونه يې په څرګند ډول ښيي؛ د کرکې وړهم وو. سرتېرو د وګړو په تاوان ځښل او خوړل کول، بې له دې چې افسران يې کنترولولی وشي؛ دوی په خپله دغسې بېباک کسان وو، چې کوم څه به يې خوښېدل، په زور به يې اخيستل، د جنسي غوښتنو په ګډون او هرڅه به يې وړيا تر لاسه کول او که مقاومت به ورسره کېده کړول او وژل به يې کول. له بلې خوا به چې څه وختوګړو چانس وموند، بدل به يې اخيست. د کالات انځورونه د وګړو په وړاندې هم د سرتېرو وحشت او د سرتېرو پر وړاندې دوګړو انتقامونه ښيي، چې کله له خپلو ټوليونه دباندې په لاس ورتلل. پردې برسېره د يوه سرتېري څېره د يوه مجرم يا ځپونکي په شان په ډېرو وختونو کې او په ډېروځايونو پورې اړه لري. د انجيل د وخت د روم سرتېري، يانې هغه وخت چې دوی تر حکم لاندې وو، له يو سل مشرافسر (Centurian) سره د عيسی (ع)

مکالمه نه یوازې د هغه کړونې او وژنې ښيي، خو که له سرتېرو څخه د سان پال (St.paul) غوښتنه چې له غصب کولونه ډډه وکړي، د هغو د سلوک په اړه کوم شی راښيي، هغه دادي چې دوی په چل ول بډې اخیستونکي او ډاره ماران وو.

یو فردي سرتېری به ولې په اوږده موده او په ډېرو ځایونو کې یوه کرکجنه او کرغېړنه څېره وه؟ کرکجنه ځکه وه، چې هغه بد سلوکي کوله او کرغېړنه په دې چې په عمومي ډول دی هغه کس و، چې د ټولنې له ډېرو ټیټو خلکو نه به غوره کېده، یانې هغه څوک چې په تقوا سره یې ژوند کولی نه شو، یا هغه څوک چې د تقوا پروا یې نه کوله؛ د حرامي پلار به کېده چې ساتلی به یې نه شو او غلا او وژل به یې کول. دی په سرتېري کېدلو سره له قانوني ژوند نه تښتېده؛ په خپله پوځونو به تحمیل کېده. د چین په نرمه ټولنه کې سرتېري په خاص ډول ډېر ذلیل ګڼل کېدل ان تر دې چې هغوی به دبدلمنو او مجرمانو په قطار کې شمېرل کېدل.

حتی د ملکې وکټوریا د وخت برتانیېکې چې د ټامي اټکنز (Tommy Atkins) له خوا مدني بد سلوک نه زغمل کېده عام سرتیري د ټولنې نه خوښېدل. څنګه چې هغه له دېنه منع و، چې له اجازې نه پرته واده وکړي او په هر حال عاید یې دغومره نه و، چې ښځه ساتلی وشي، هغه په یوې درنې کورنۍ پورې تعلق لرلی نه شو. د راتلونکي فیلډمارشال ویلیم رابرټ سن (William Robertson) مور وویل چې زویه ((غواړم په ګور کې دې خښووینم، نه په سره کرتۍ کې.)) ده چې هغه وخت یې په یوه کور کې نوکري کوله، غوښتل یې سرتېری شي، دی بیا فیلډ مارشال شو. د هغې د کلي صافې روحیې اعتراض وکړ. چې ښه ده پلي سرتېري وینه سور حتی په هغه وخت کې هم چې

د ونډېو سرکونډي پوځ (Widow of Windsor Army) په هغسې ټينګ انضباط سره اداره کېده، لکه ويکشني ورځ کليسا چې اداره کېدله.

بيا نو څنګه ډاکټر جانسن په دغه فکر شو چې پخواني نارينه سرتېري ځانونه ښه ګڼي؟ ددغې معما حل کول به مشکل نه وي. دلوړ قدرت تر لاسه کول د ناوړه چلند کولو لپاره يوه دايمي لمسونه وه او مونږ په دغه اړه په خپلو ورځپاڼو او تلويزيوني مخونو کې پياوړي شواهد لرو. زورور کله نا کله ناتوانان وژني، لکه چې دا د انساني طبيعت قانون وي، چې د قربانۍناتوانيد وژني لامل کېږي. زما ملګری ډان مک کولين، چې يو ستر عکاس دی او په لبنان او نورو ځايونو کې يې ټول وژنې ليدلې دي، وايي چې له وسله والو نارينه ووسره چې د وژلو نيت يې کړی وي، دليل ويل هغوی په ټينګه له دې نه اړوي چې رحم وکړي.

خو د انسان په طبيعت کې دهغه پر خلاف ميل هم شته دغسې تمايل چې هغه هم مونږ د يوه عمومي قانون په شان پېژنو او هغه دا چې د ناتوان پر وړاندې د زورور له خوا له زور نه کار اخيستل په طبيعي ډول يو زړه بدونکي عمل دی. دا يوه عامه خاصه ده چې هغه دوجداني نا ارامۍ او پښېمانۍ لامل کېږي؛ مونږ هغه څوک چې دماغي خلل لري دغسې کس ګڼو چې د پښېمانۍيا وجداني نا ارامۍ وړتيا نه لري. داسې هم په برابره اندازه دا يوه اصلي ځانګړې خاصه ده چې هغه تمايل چې د پښېمانۍ له موقعې نه ډډه کوي، هم په فرد او هم په هغه کلتور کې چې دی ورپورې اړه لري د باانصاف جنګ د اخلاق مانا کېږي. سپورت په دې اړه يو ښه مثال کېدلی شي، غالب ټيمونه د پېژندل شويو مغلوبو ټيمونو په لاندې کولو سره قناعت نه کوي. دوی له برابرو ټيمونو

سر مسابقه غواړي، چې که پرې غالب شول د سرلوړۍ احساس کوي او که پرې غالب نه شول، عزتمن مغلوبیت ته غاړه ږدي.

داد نظامي عزت ایډیا یا فکر دی چې د ډاکتر جانسن د قضاوت شرح کوي. په جنګ کې دعزت لټون تاریخي ریښې لري او دا غیر طبیعي نه ده چې هغه د انسان په روحیه کې ژور ځای لري. د لومړنیو غیر خونړیو جګړو په مراسمو کې ځوانانو مسابقه کوله چې خطر منونکي ولیدل شي. په لاپېچلو ټولنو کې د خطر لټون له ټولنیز دریځ سره په دوه سمتونو پورې تړلی و. بریالي جنګیالان اعلی وسلې غواړي. دوی به چې په دغسې وسلو سمبال شول، یوازې له هغوسره به یې جنګ غوښته، چې د دوی په شان به په ښو وسلو سمبال وو. د برونز (Bronze) دوخت چین د جنګي بګیو چلوونکو له عامه پلیو سرتېرو له جنګ کولو نه کرکه کوله او که یې په وسه وه کوښښ یې کاوه له ورته بګۍ چلوونکو سره جګړه وکړي.

د هومر (Homer) ایلیاد (Iliad) چې د لویدیځې نړۍ په ادبیاتو کې د جنګیوه پیاوړې قیصه ده، نژدې یوازې دعزت په اړه ده. یونانیان نه یوازې د عزت په موضوع کې ټرای (Troy) ته لاړل. همدا چې دوی هلته ورسېدل اتلان یې وهڅېدل چې د ټرای له اتلانو سره په هغه اندازه چې د بري لپاره جنګ وکړي، د عزت لپاره وجنګېدل.

هومري ایډیالونو په لویدیځ تاریخ کې نفوذ کړی دی. په مخزېږدي ۳۳۴ کې په پارس باندې یرغلونه د لوی سکندر له لومړیو عملیاتو څخه یو دا و، چه له یوه معبد نه هغه وسله تر لاسه کړي چې د ټرای په جنګ کې یونانیانو

ترېنه کار اخيستی و، چې ده هغوی خپل اسلاف ګڼل، په داسې حال کې چې دوه زره کاله وروسته دغه فکر د لرغون پوهانو ډېرو افسرانو ته الهام بښونکی و، چې دوی له هغې عملياتي قوې نه چې ګالي پولي (Gallipoli) ته روانېدل ټرای ته نږدې له الوتکې نه ښکته شي.

سره له دې هم دهومري ايډيالي عزت عصري کسبي سرتېري ته ډېر نيمګړی ښکاري، د هغو ارستوکراتو شواليې (Knights) تېر شويو ته خولا څه کوې. په هومري جګړه کې غالب به په مات شوي دښمن هيڅ رحم نه کاوه. هغه عبارت چې په هغه کې آکيل (Achiles) (د هومرد قيصې اتل) د خپل پرزول شوي دښمن هيکټر (Hecktor) جسد خپلې جنګي بګۍ تر شا په وياړ سره کش کاوه، شايد د ايلياد په ټوله قيصه کې تر ټولو هيبتناک وي. عزت به ډېر وحشي هم وي لکه چې د عيسوي مذهبي هيساتونو د زړوړتيا هغه رپوټونه يې په څرګند ډول ښيي، چې د شمالي امريکې هنديانو په خپلو مغرور ويرغملو باندې حواله کاوه. دعزت تمرين يوازې په لوړو اخلاقي مقرروسره نرم شو، په خاص ډول په عيسويت سره چې جنګياليو زده کړه، چې د خپل دښمن عزت وساتي حتی د ماتې په وخت کې هم.

شواليه توب (هغه صفتونه چې يونايټ يې بايد ولري لکه مېړانه، عزت، له کمزوري سره مرسته، د زخمي او ښځو درناوی) د يوې مقررې په توګه د عيسوی اروپا په تاريخ کې يوازې د شتمنو لپاره وروسته وټاکل شو. خو څنګه چې هغه په نولسمې پېړۍ کې، لکه په څوارلسمې پېړۍ کې، له حد نه ډېر د ميتالوجۍ يا افسانې په شکل ستايل شوی، په دې کې شک دی چې هغه به دعالمي اخلاقي مقررې شکل لرلی وي؛ خو په دې کې شک نشته چې هغې هم

پخوا او هم وروسته د نظامي عملیاتو په ډګر کې د بې وزلو او داسې هم په اجتماعي لحاظ لوړو جنګیالیو سلوک متاثر کړی وي. هغه ضوابط چې د بېلګې په ډول د درجې یا مقام له توپیر نه پرته یې له ټولو بندیانو سره دښه چلند غوښتنه کوله، دمخه په اتلسمې پېړۍ کې په کسبي پوځونو کې رواج درلود. کوم څیز چې په شمالي امریکا کې د برتانیې او فرانسې په جنګونو کې دواړه خواوې ډېر په غضب کړې داو چې متحدو هندیانو نیول شوي عادي سرتېري، نه د هغو افسران وکړول او هغه له هغو نه په څرګندې سرغړونې سره، چې متمدن معیارونه ګڼل شوي وو.

د نولسمې پېړۍ تر پای پورې اروپایي پوځونو چې تر ډېر حده نه یوازې دژنیو د انسان پالنې په کانونشنونو سره اغیزمن شوي وو، د ښه چلند مقررې پوره عملي کړې، چې د صفوفو له خوا یې پوره منل شوي وو. نه یوازې اروپایي پوځونه: د روسیې –جاپان ۱۹۰۵-۱۹۰۴ په جنګ کې باندنیو مشاهدانو د دواړو مانچوریا د ملکي وګړو او هم ددښمنو پروړاندې د جاپاني سرتېرو د ښه سلوک په اړه راپور وړاندې کړ.

د ساموراي[۱۸](Samurai) طبقې چې د جاپان د نوي لویدیځ ډول پوځ افسري کوله، په بزګر جلبیانو باندې یې خپل د شوالیه توب ضابطي عملي کوله. یوازې د ۱۹۳۰ په لسیزې کې چې متعصب نشنلستي افسران په کار شول د جاپان وسله وال ځواکونو په دې پیل وکړ چې له جلبیانو سره په روزنې کې د ځناورو په شان چلند وکړي، ددې لپاره چې هغوی بیا خپل له کرکې نه ډک زړونه په باندنیو تش کړي. په نتیجه کې د متحدینو په لس ګونه زره جنګي بندیانو هغسې مصیبتونه ولیدل لکه هسې چې ملیونو چیني ملکیانو وزغمل.

په یوه مخکیني لیکچر کې په نولسمې پېړۍ کې د اروپا په نظامي کېدلو وغږېدم. بې له شک نه دا د دغې وچې د انکشاف واقعیت و، لکه د جاپان په لوېدیځ کېدلو کې چې و. نتیجه یې په ۱۹۱۴ کې جنګ ته د هغو لویو پوځونو مارش و. دغسې پوځونه د نظامي عملیاتو لپاره تر انضباط لاندې نیول شوي وو، لکه هسې چې د ښه نظامي سلوک له مقررو او ضوابطو سره روږل شوي وو. دغو کوډونو اثر وکړ. ددغه ستر جنګ پوځونو نه دیوه بل اونه دملکیانو پروړاندې بې رحمي وکړه. یوازې جرمنانو په بلجیم کې په اول سر کې او په قصدي ډول ویرول وکړل دوی ښځې بې عزته نه کړې، چور یې ونه کړ او له ټپیانو او جنګي بندیانو سره یې ناوړه سلوک هم ونه کړ.داسې هم د کاتولیک او پروټسټان پوځیانو هغسې چلند ونه کړ. لکه چې دوی په جرمني کې ددېرش کلونو په جنګ کې کړی و.

دبرتانیې د ګړندي عملیاتي ځواک په اړه مالومات به دغې پوښتنې ته دځواب په ورکولو کې مرسته وکړي. دغو کوډونو یا د ښه چلند مقررو ترهغو پورې ملکي او داسې هم نظامي ریښې تر خپل سیوري لاندې کړې وې. کومې هغه رضاکارې لواګانې چې په ۱۹۱٦ کې سوم (Somme) ته دمرګ لپاره ولاړې، په ځان باندې یې په خپله د یو څه خنداور نومونه ایښي وو، (دکلیسا هلکان، د ګلاسکو ټرام وي، اکرنګټن انډیوالان، لومړی فوټبال.) دا هغسې نومونه وو، چې نه یوازې د وطنپالنې احساسات بلکې د ویکټوریا د مهال او دهغه د ټولو موسسو د حیثیت تمثیل یې کاوه، لکه کلیسا، کارځای، د صناعتي ښار د نږدې توب او سپورتي ورورۍ.

دا به عجیبه ښکاره شي، چې فکر وشي، خو سره لـه دې هـم دا حقیقـت دی چې د برتـانیې د کـارګرې طبقـې نارینـه چـې دغـه لـوی جنـګ تـه لاړل، د هغـو خپرونو په اثر وو چې دوی په ځوانۍ کې لوستلې وې، بې له دې چې پوه وي چـې په هغو کې د با انصافۍ لوبې، یا دښوونځي احـترام د ښـه کولـو او لـه نـاتوانو او ښځو سره د ښه چلند یادونه ډېره شوې وي. هغو افسرانو چـې د هغـو قومنـداني يې کوله دېته ضرورت نه لاره، چې هغو ته دعـزت د کـوډ مقـررې ور زده کـړي، کـومې چـې دوی د وول ویـچ (Woolwich) او سـند هرسـټ (Sandhurst) پـه ښوونځیو کې زده کړي وو. دغو کوډونو د مخه ددغو رضا کارو سرتېرو په سـینو کې ځای نیولی و. د فرانسې، جرمني،استریا- هنګري او روسیې پوځونو هغو ته د ورته کوډونو رعایت کاوه، که څه هم هغه زیـاتره پـه مـذهبي شـکلونو وو، نـه پـه سیکولر یا دنیایي شکل. دا د عزت ایډیا یا مفکوره اوله هغې سره تړلـې د وظیفـي او د ځان د قربانۍ ایډیالونه وو چې لومړي نړۍ وال جنګ ته يې انرجي ورکوله.

په څه ډېر هیبتناتک اثر سره؟ پخوانیو بېلو ټولنو ددغـه کوښـښ بـې اغیـزې توب پېژندلی و، چې هر نارینه سرتېری کړي، لکه هسې چې اروپا په ۱۹۱۴ او بیـا په ۱۹۳۹ کې دغسې کوښښ وکړ. پخوانیو ټولنو شاید هیله لرله، چـې ټـول نارینـه به جنګیالي وي؛ ډېرو يې له سختو بدویانونه پرته، په نظر کې نیوله چې جنګ پـه دغه ډول وکړي، چې جنګیالي يې له ډېر سخت حال سره مخ نه شي. د تاریخ پـه اوږدو کې پرمختللیو ټولنو درک کړې وه، چـې د سرتېـري ژونـد د ټولـو لپـاره نـه دی. جنګ نه یوازې جسمي قوت او د زغـم صـفت غواړي؛جـذباتي پیاوړتیـا هـم غواړي، چې ډېر يې نه لري. په نتیجه کې سوداګري شـتمنو ټولنـو زیـاتره وخـت اجیران یا منظم سرتېري نیول چې د دوی لپاره جنګ وکـړي. اسلام چـې پـه اول

کې یوه پیاوړې مبارزه ټولنه وه، وروسته د وچو میروخښډو ته لاړه چې سرسخت پوونده ونیسي چې د دوی له پولونه دفاع وکړي. د روسیې زارانو یا تزاریانو، خپل اضافي سرفان یا نیمه مریان ددغه کار لپاره ونیول. لوی فرید ریک (د پروس پاچا) خپل ټول نارینه په خپل پوځ کې ونیول. دریم جارج (د برتانیې پاچا) د جرمني له وړو ټولنو څخه پوځونه په اجوره ونیول، چې د هغه له یاغي امریکایانو سره جنګ وکړي. یوازې په معاصر مهال په واقع کې په شلمې پېړۍ کې دولتونو د لرغوني یونان هغه تمرین سرچپه کړ چې ټول نارینه یې د جنګ ډګرته استول. ډېریې ددغه کار لپاره مناسب نه وو.

دا ولې دغسې وو؟ یو دلیل یې دمعاصر جنګ اوږدوالی دی. دا به ډېرو ته عجیبه ښکاره شي که څه هم چې هغه باید په رښتیا له یادنه ایستلی شوی نه وي، چې د لرغوني یونان جنګونه ډېر لنډ وو، زیاتره د یوې ورځې عملیاتاو عملیات هم لنډ وو. دیوه ساعت وژل کېدل، چې په هغه کې به یوه یا بله خوا ماته شوه او مغلوبان به کورونو ته په شاشول او غالبانو به وژل شوي خښ کړل. د شلمې پېړۍ لوی جنګونه کلونه اوږده شول او عملیات له یوې میاشتې تر بلې پورې. وردون (Verdun) په معمولي ډول د شلمې پېړۍ د ډېر نادر نظامي عمل په نامه یادېږي، چې د ۱۹۱٦ له فبرورۍ نه ترنومبر پورې اوږدشو او ډېر فرانسوي سرتېري څو ځله ور واستول شول. هغوی چې په وار وار دز خمونو یا دمرګ له خطر نه روغ ووتل او له فرانسوي سرتېرو نه چې جنګ ته لاړل په نهو کې دوه یې تلف شول د تقدیر او په پای کې د ناهیلي توب له مکررو مرحلو نه تېر شول. د۱۹۱۷ په پسرلي کې د فرانسې په پوځ کې چې په جنګ کې د تلفاتو شمېرې، له هغه قوت سره چې د سفر پر وخت کې یې لاره برابر شو، د پوځ

اراده ماته شوه.د نظامي فرقو له نیمايي نه ډېرو سرتېرو په اعتصاب کې ګډون وکړ او د بیا حملې له کولونه يې ډډه وکړه. د همدغه کال په پای کې وو، چې ایتالیایي او روسي پوځونو هم معنویات له لاسه ورکړل او په ۱۹۱۸ کې د جرمن پوځ له ماتې سره مخ شو.

په لنډ ډول د جنګ اوږدوالی د فرد ژوندي پاتې کېدلو عقدې چې د احصایې د احتمال په محاسبه کې چې ((زه به نه یم)) له مینځ نه یووړ په عین مهال کې، د هغه فرد تجربه تر هغو چې ژوندی پاتې و، تر هر بل وخت نه ډېره کرغېړنه او ترخه وي، د عمومي غیر مصونیت، چیغو او نارو او د زخمونو او ټوټه کېدلو په لیدلو سره جنګ لا هم بد او کرغېړن شوی و. د ټولو نتیجه د روحاني تلفاتو ډېرېدونکې نښې وي. دا دغسې حادثه وه چې په لومړي نړیوال جنګ کې لږه او په دوهم جنګ کې په ضروري ډول وپېژندل شوه.

مونږ باید د ډاکتر جانسن وینا په بل ډول ادا کړو: ((هر نارینه به ځان ښه وګڼي چې سرتېري يې کړې وي، هغه به فشار وزغملی شي.)) زمونږ په عصر کې لیدل شوي دي چې د ولسي پوځونو لوی اقلیتونه يې نه شي کولی. افراد له ویرې او ځینې وخت د ویرې له اندیښنې نه، ماتېږي، لوی پوځونه هم، په تېره هغوی چې د دوهمې یا درېیمې درجې انتخاب وي. په پر مختللو دولتونو کې دغه نوي میل چې د پوځونو د شمېر له ډېرولونه ډډه کوي یوازې له دې امله نه ده، چې د خدمت په وخت کې دهغو ساتل او وسلې ورته تهیه کول ډېرې اقتصادي ستونزې لري. هغه ددې انعکاس هم دی چې له نویو پوځونو نه د استفادې په اړه شکونه پیدا شوي دي. زه اوس دا ویلی شم چې په لومړي نړیوال جنګ کې د لویو پوځونو عمده وظیفه دا وه چې له هغو نه د وسیلې په توګه کار

واخیستل شي، چې ملکي خلکو ته چې د جنګ ملاتړ یې کړی وي، ډېر تاوانونه ورسوي، زه په خپل لومړي لیکچر کې د تیلګراف له هلک نه وغږېدم، چې د کلیو په کوڅو کې په بایسکل ګرزېده، په دې ډول چې هغه پلرونو، میندو او مېرمنو ته په واقع کې د ترور شګون شوی و.

حتی په دوهم نړیوال جنګ کې هم د ټکنالوجیکي انکشاف او صناعتي پراختیا له امله د خلکو پرګنۍ ددښمن دوسلو پر وړاندې وسله والې کېدلی شوې، د ډېرو رول په ساده ډول دا شو چې ددښمن د فیرکولو لپاره هدفونه برابر شوي وي. دا یوازې زموږ په عصر کې وو، چې له لوی نظامي ماشین سره د هغو انسانانو مقابله بې ګټې مالومه شوه چې دغسې ماشین یې نه لاره. دغه تمایل په ۱۹۹۱ کې د خلیج په جنګ کې ښکاره شو چې د عراق ناتوان او په خرابو وسلو سمبال پوځ ته همدا چې ښې علامې ښودل کېدلې تسلیم کېدل.

نو موږ به ومنو چې جنګ او فرد له ملګر توب نه لاس اخلي. یوازې په غیر عادي حالاتو کې چې دواړه د وخت او ځای په لحاظ سره لیرې وو، دغه اړیکې د اکثریت لپاره وي. اوس دا دغسې ارتباط دی چې لږ ترلږه په لوېدیځې نړۍ کې په واقع کې د لږه‌کي لپاره دي. دغه لږه‌کي هم زموږ د سملاسي او هم د نړۍ دراتلونکې ښېګڼې لپاره ډېر مهم دي او زه به په خپل وروستي لیکچر کې د جنګ دراتلونکو نتایجو په اړه وغږېږم.

په داسې حال کې چې جنګ اوس د شمتنو دولتونو له مادي او جذباتي نظرڅخه له حد څخه ډېر تاوان لري، چې ډېر تخنیکي او انساني ظرفیت یې ورته ممکن کوي، د هغه پر خلاف د غریبو دولتونو او ددولت د مفکورې د

دښمنواو داسې هم دننه په دولت کې د ډلو لپاره ارزان او مرګکي او په هغو دولتونو کې چې په خپلو اجزا وو ويشل کېږي، ارزان ګرزولي دي. په خپل سرواکمن، ترهګر او د بنسټ پالنې غورځنګ، قومي يا مذهبي ډلې ټولې دعصر د ارزانو او پرېمانو وسلو له امله د مدنيت لپاره دغسې دښمنان شوي دي، چې دمخه هيڅکله ورسره مخ نه وو. هغه خطر چې دوی يې وړاندې کوي هغو مسوول دولتونو ته، چې د سولې خونديتوب ته ژمن دي، حتمي کوي چې د ډېر لوړ صفت ځواکوته، انساني وي يا ټکنالوجيکي په هر وخت کې بايد د نړۍ په ټولو برخو کې په کار واچوي.

په دغسې ځواکونو کې غړيتوب د لوړو مهارتونو برې حتمي کوي. داسې هم هغه يو خاص اخلاق يا د ځان په تاوان د فرد اماده توب غواړي چې د عنعنوي ارزښتونو لپاره به جنګيالي جنګېدل، بلکې په خپله د سولې ددعاعيې لپاره وجنګيږي. د عزتمن سرتېري عزت نوی مفهوم پيدا کړی دی. دهغه په تر سره کولو سره به ټول هغوی چې ترسره کوي يې په دې چې سرتېري يې کړې ده، ځان ترنورو ښه وګڼي، زمونږ لپاره حتمي ده چې دهغو عزت وکړو.

# پنځم څپرکی

## ایا جنګ ته به پای ممکن وي؟

په مخزېږدې پنځمې پېړۍ کې د لرغوني یونان د افیسوس (Ephesus) هیراکلیتس (Heraclitus) وویل چې ((مونږ باید پوه شو، چې جنګ په ټولو کې مشترک دی او ټول شیزونه په جګړې سره مینځ ته راځي او له مینځ نه ځي.)) دغه ژور کلاسیکي نظر د یوناني نړۍ دپرله پسې جنګونو محصول و، هم د یوناني او یوناني تر مینځ او هم د یونان او د پارس د امپراتورۍ د قدرت تر مینځ. دا دغسې نظرو، چې د هغه وخت ډېر آزاد یونانیان پرې معتقد وو. هغه خلک چې ځانونه یې جنګیالان ګڼل، لکه هسې چې یې بزګران، فیلسوفان، تاریخپوهان ګڼل او دوی منلې وه چې د ژوند په بهیر کې به په پلو پوځونو یا سمندري پوځونو کې د نېزې ویشتونکو په شان خدمت کوي.

ایا نن دغه نظر رښتیا کېدلی شي؟ په داسې حال کې چې په تېرو لیکچرونو کې د جنګ د سرچینو او د فرد او د دولت د بدلېدونکو رولونو په اړه غږېدلي

یم، اوس په دغه وروستي لیکچر کې باید د راتلونکي په نړۍ لید باندې نظر واچوم. ایا جنګ ته به پای ممکن وي؟

د جګړې دغه کلاسیکي نظر د انسان ژوند ته د مرکزي ټکي په شان د لرغوني نړۍ له حدود څخه د باندې هم ډېر وپایید. په داسې حال کې چې هم عیسویت او هم اسلام دغه فکر ته په ښکته نظر نه کتل متقي مسلمانان معتقد وو، چې لوی جهاد یا مقدس جنګ د نفس پر ضد جنګ دی. خو هغه په نولسمې پېړۍ کې په قوت سره بېرته ژوندی شو. دا هغه وخت و، چې ساینس د چارلز ډاروین د اثر له لارې دغه تعبیر ته مخه وکړه چې په خپله ژوند د جنس نوع دننه او تر مینځ شخړه یا جګړه وه.د هغه د تر ټولو پیاوړې طبیعي انتخاب تیوري د فلسفې، ټولنیزو پوهو او د سیاست پوهې ډګرونو ته انتقال وکړ او ددغه انتقال خطرناک نتایج د سوشلزم ډولونه او په خاص ډول د لینن بولشویزم او د هټلر ملي سوشلزم شو.

د حیرانۍ ځای نه دی چې د عصري نړۍ په بهیر کې د کمونزم او فاشیزم او دهغو د ټولو کارنامو دیوه نوښتګر او سم کوونکي قوت په حیث د جګړې په ضرورت باندې د هیراکلیتس د نظر رد هم دی. مونږ په دغسې عصر کې ژوند کوو، چې جګړې ته په ښه سترګه نه کتل کېږي، دغسې عصر- چې د همغږۍ، روغې جوړې او تر هر څه ډېر د حشر- او ګډکار د ایډیالونو په لار روانه شوی دی. اوس د سوشلزم او کاپیټلزم تر مینځ درېیمه لار یا د ګډې ټولنیزې روحیې لار (Communitarianism) یو سیاسي غورځنګ دی. دا دغسې غورځنګ دی. چې د ډېرو نومونو او شکلونو له لارې دموکرات سیاستمداران په زیات شمېرځانله کشوي. په موکلانو یا رایه ورکوونکو کې هم پیاوړی ملاتړ لري.

داسې ښکاري چې اوس يو عادي رايه ورکوونکی په دې نظر دی چې ((مونږ په خپل عصر کې په کافي اندازه جګړه لرلې او څه څيز چې مونږ يې غواړو هغه بې له جګړې نه ژوند دی.))

دا هغه موخه ده چې ورته رسېدل هم شوني دي، په تېره ددغه هېواد رايه ورکوونکو ته. برتانيې له ۱۹۴۵ نه وروسته يوه مبارکه نړۍ لرلې ده. له دوه هيبتناکو جنګونونه وروسته چې په دوهمې کې يې مونږ د عزت وړ برخه اخيستې وه، مونږ نږدې له هغې ستونزې نه په امان وو، چې د نړۍ نور لوی دولتونه يې له پايلو سره مخ وو. هو له امپراتورۍ نه زمونږ په وتلو سره جګړې وې، خو مونږ دغه انتقال ددغسې جنګ له پارولو نه پرته تنظيم کړ، چې په افريقا کې دپورتګال او په الجيريا کې د فرانسې له انتقال سره هيڅ د پرتلې وړ نه دی. مونږ له هغه ډول ستراتيجيکې مداخلې نه ډډه وکړه، چې امريکې په ويتنام او شوروي اتحاد په افغانستان کې وکړه.

زمونږ يوازينی يو اړخيز جنګ دفاک لينډ جنګ هم قانوني او هم بريالی و. د کوريا او خليج په جنګونو کې زمونږ ګډون هم قانوني او هم د ستاينې وړ و. مونږ ټينګ دښمنان نه دي خلق کړي او په داسې حال کې چې د ملګرو ملتونو تر بيرغ لاندې مود کړې په هره برخه کې په ډېرو ښتو کې برخه اخيستلې ده، يو عادي برتانوی ښه دليل لري چې ووايي زمونږ په عصر کې دښې ډيپلوماسۍ او په معقول ډول د سنجول شوي ځواک له لارې جنګ تر کنترول لاندې راوستل شوي دي. بدمرغه، ښه نه اداره کېدونکي او ښه نه دفاع کېدونکي هېوادونه بل ډول او غمجنې تجربې لري. خو ټوليز ملي نظر به استدلال وکړي چې چيرته چې مونږ لاړښوولې، نور پرې روانېدلي شي. يو برتانوی به سوچ وکړي چې جنګ

عادل نه دی او جنګ ټولو ته هیڅ مشترک نه دی. دا ارام کوونکي فکرونه دي؛ خو تېرایستونکي هم دي. له هغه مرکزي واقعیت سره چې مونږ ژوند کوو او زمونږ راتلونکی باید ورسره د تل لپاره ژوند وکړي، ذروي وسلې دي. دغو وسلو د دوهم نړیوال جنګ په بهیر کې هغه لار چې نړۍ پرې روانه وه، د تل لپاره بدله کړه. بین‌المللي ټولنې حتی له لومړي نړۍ وال جنګ نه د مخه شاید ددغسې سیستم لپاره لټون کاوه چې په هغه سره بین‌المللي موافقه د وسلو ځانګړتیاوې کنترول کړي، چې په جنګ کې به له هغو نه قانوني ډول کار واخیستل شي او هره هغه کشاله چې جنګ پاروي ممکن له کوم ډول ملي دایرې نه دباندې کوم ډول منځګړتوب ته غاړه کېږدي.

خو دا یوازې هغه وخت و چې له ۱۹۴۵ نه وروسته نړۍ له دغسې وسلې سره مخ شوه، چې زیانونه، یې له ګټونه، په نا پرتله ییز ډول ډېر ول او د هغو دولتونو په مینځ کې یې چې دغه وسلې لري، د جنګ د مخنیوي ضرورت په مطلق ډول حتمي کړ. دغه ضرورت لا هم شته او دوام به وکړي. که څه هم دا د ساړه جنګ په عصر کې د ترور بېلانس یا انډول و، چې د ذروي جنګ مخه یې ونیوله، ایا د ذروي جنګ مخه به د تل لپاره نیول کېدلی وشي؟ زه ښه لیدونکی یم. انسان تشدد ته متمایل او خطر منونکې نوعه ده؛ خو عقلاني هم ده. له ۱۹۴۵ نه وروسته د ذروي وسلو سره زمونږ په اړیکو باندې هغومره چې معقولیت غلبه لرلې ده د تشدد او خطر منلو میلان نه ده لرلې. هو یو واقعي هستوي بحران و، چې په ۱۹۶۲ کې په کیوبا کې د شوروي د هستوي توغندیو ځای پرځای کولونه پیدا شوی و، خو دا هغسې بحران و، چې په خبرو سره له مینځ نه یوړل شو. ددغې پېښې په برابر کې مونږ باید وپېژنو چې د بحران له هوا نه اخوا په

موافقې سره دغسې ډېرې پرېکړې شوې دي، چې دهغو دولتونو شمېر محدود شوی، چې اجازه لري هستوي وسلې ولري؛ چې د هستوي وسلو شمېر چې هستوي دولتونه یې شاید ولري محدود شوی دی.داسې هم د هستوي وسلو نوعه چې په خاصو سیمو کې ځای پر ځای شي او هغه سیمې چې دغسې وسلې پکې ممکن ځای پر ځای شي هم محدودې شوې دي.

خلا یا تشه د بین‌المللي موافقې له مخې غیر نظامي شوې،لکه د شمال قطب چې شوی دی. اروپا د منځني واټن د ځای پرځای کولو لپاره منع شوې سیمه ده. امریکا او پخواني شوروي اتحاد په تړونونو سره ژمنه کړې، چې د هستوي وسلو شمېر یې محدود کړي او نور یې هم محدود کړي. تر ټولو مهمه داده چې د نړۍ ډېر دولتونه د هستوي پراخېدلو د تړون لاسلیک کوونکي دي. دوی ژمنه کړې چې هستوي وسلې به د تل لپاره ونه لري. د نه پراخېدلو دغه تړون هیله بښوونکی دی، په خاصه توګه چې د همدغې پېړۍ (شلمه پېړۍ) په سرکې دوروستي ستر وسله وال کېدلو سیستم د ډېرو درنو وسلو جنګي پېړۍ په نظر کې ونیولی شي. د ۱۹۱۴ او ۱۹۶۰ کلونو تر مینځ یولس دولتونو د برتانیې لار ونیوله چې ددغسې درنو وسلو خاوندان شي، چې په ډېرو حالاتو کې هغه بې ګټې او بې مقصده و. د ۱۹۴۵ او ۱۹۶۰ کلونو تر مینځ یوازې څلورو دولتونو د امریکې لار ونیوله چې د هستوي وسلو خاوندان شي،په داسې حال کې چې ټولو د هستوي وسلو دنه خپرېدلو پرنسیپ ومانه. په دې ډول اوس د هغو دولتونو شمېر محدود شوی دی.

د هیلې وړ ددغه ټکي په دوام به هغه برى هم یاد کړو چې د هستوي وسلو په محدود کولو کې ترلاسه شوی دی. بې وسلې کېدلدغسې یوه افاده ده چې په

ښه سترګه ورته نه کتل کېږي؛ ښه غبرګون نه پاروي، ممکن لـه دې املـه چـې د هاګ ۱۸۹۹ او ۱۹۰۷ کانونشنونه ناکام شوي وو، چې ملکي هدفونه باید بمباري نه شي. په شلمې پېړۍ کې د ملکـي هـدفونو بمبـاري کېـدل د مصـیبتونو لـه لویـو عواملو څخه وو. خو په عین حال کې د ۱۹۲۵ د ژنیـو پروتوکـول چـې د جنـګ پـه بهیر کې یې د هاګ د موانع په څېـر د غـاز اسـتعمال منـع اعـلام کـړل، ددوهـم نړۍ وال جنګ په بهیر کې دهغه پوره مراعات وشو. په لومړي نړیوال جنګ کـې دهغه رعایت نه و شوی. دوه ځله ترېنه سرغړونه شوې ده.یو ځـل پـه ۱۹۳٦ کـې په یتوپیا (حبشستان) کې د ایتالې له خوا او بل ځل دننه په عـراق کـې د صـدام حسین له خوا خو دغه دواړه سرغړونې سختې وغندل شوې.

تېر کال یو بل بین‌المللي توافق لیـک دانسـان- ضـد مـاینونو (انتـي –پرسـونل ماینونه) په نامه د نړۍ نزدې هر هېواد له خوا لاسلیک شـو او زه فکـر کـوم چـې هغه به وروسته هغسې منع شي، لکه د کیمیاوي عواملو استعمال چې منع شـوی دی. زه غواړم یوه بله وړاندوینه هم وکړم چې یو وخت به نورې هیبتناکې وسـلې لکـه ړانـده کـوونکي لیزرونـه (Lasers)، وړې توغنـدي (Cluster Missiles) او پیاوړې ټوټه کوونکې ګولۍ (Projectiles) هم منع اعلام شي.

خو مونږ باید د جاري جنګ د واقعیت پـه اړه واقـع لیـدونکي واوسـو او هغـه لازمه کوي چې هم ښه لیدونکي او هم بد لیدونکي واوسو. د بدلیدلو لپاره خاص علتونه د غریبو هېوادونو په مینځ کې د جنګ له ډګر نه راولاړېږي چـې د خپلـو پیسو لګولو لپاره ښې لارې ولټوي او دهغه پروړانـدې جـګ شي چـې اوس د غـیر دولتي جنګ په نامه یادېږي. دواړه نه انکار کېدونکې حادثې دي. په داسې حال کې چې پخواني تاسیس شوي دولتونه، په خاص ډول د لوېدیځې اروپـا او شـمالي

امريکا، دولتونه له جنګي ماهيت نه خير رسونکو واحدونو تـه تحـول کـوي، ډېـر نوي هسک شوي دولتونه، په تېره هغوی چې د اروپـايي امپراتوريـو لـه مېـنځ نـه تللو نه وروسته خپلواک شوي دي، نه دي توانېدلي چې له هغـو داخـلي دښـمنيو نه ځان وژغوري، چې يې له استعماري دورې نه د مخـه لرلـې، يـايې لـه پخوانيـو هغو استعماري ګاونډيو سره لرلې، چې د استعماري امپراتورۍ تر کنترول لاندې وو.

هغه اروپايي ايډيالوجي ګاني چې د استعمار په دوره کې ترلاسه شوې، د هغـو داخلي او خارجي دښمنيو بل علت و، لکه پـه کمبوديـا کـې چـې د مارکسـزم پـه افراطي شکل معتقد کېدل چې د دوه مليون خلکو د وژل کېدلو لامل شـو. هلتـه د هغو وژنې ته پېلامه د هغو له خوا چې دوی يې له سياسي نظرنه بېلارې ګڼـل د يوي بلنې په شکل وو، چې ((مونږ ته د نورې مطالعې لپاره راشي.)) په نورو ټولنـو کې د اقتصادي او سياسي هيلو ناهيلي توب چې د آزادۍ نتيجه وه، په متجـاوزو او په خاص ډول د لوېـديځ پـر ضـد شـکل د مـذهبي عقيـدې لـه سره تعبيرېـدل شول. ترهګران چې په اسلامي بنسټ پالنې سره وهڅول شول ځانونـه يـې پـه دې قانع کړل چې ددوی ټولنې چې لـه اقتصـادي سـتونزو سره مـخ دي، د لوېـديځ د توطيې له امله ده چې غواړي دوی غريب پاتې وي. تراجيدي داده، چـې دغسـې فکرونه لکه په الجزاير کې شايد په خونړي جنګ سره فيصله شي، د هغو فرقو تـر مينځ چې د عصري کېدلو له لارې ملي بېرتـه ژونـدي تـوب غـواړي او دهغـو تـر مينځ چې عصري توب ګرد سره ردوي.

خو دا يوازې اقتصادي اسوده‌ګـي نـه ده چـې د جنـګ علتونـه زبېښـي. ډېـر دوام لرونکي جنګونه په ډېرو پخوانيو او په قـومي لحـاظ ګـډو سـيمو کـې راولاړ

شوي دي، لکه په پخوانۍ یو ګوسلاویا او قفقاز کې. په دغو سیمو کې د لوړ واک له مینځ نه تلل خلک بېرته هغه حال ته ټېل وهل، چې که څه هم انټروپولوجستان په یوه خوله نه دي چې هغه بدوییا لومړني جنګونه دي، هغه په یقین سره له متمدن ژوند طرز څخه په شا کېدل دي. له سیمې نه وتل، ټول وژنه، د کلتوري سمبولونو قصدي سپکاوی، په منظم ډول د ښځو بې عفته کېدل چې د بالقاناتو او د قفقاز په تازه جنګ کې ټول پوره څرګند دي، په نه انکار کېدونکي ډول په نړۍ کې د تیرې د دورې نه له پاتې شویو خلکو سره ورته والی لري، هغه هم په ډېره وحشي بڼه.

داسې ښکاري چې اقتصادي غریبي یا بې ثباتي او کلتوري بې مصونیتي هر یو د دغسې دولتونو جنګي اشتها پیاوړې کوي. خو مونږ ته ښایي د جاري جنګ د ځانګړتیاوو تر څنګه هغه وسیلي هم په نظر کې ونیسو چې په هغو سره جنګ کېږي. جنګ وار په وار دغسې فعالیت کېږي، چې نظر دېته چې شمتن دولتونه یې وکړي غریب دولتونه یې کوي. نه غیر دولتي جنګ او نه د غریبو دولتونو تر مینځ جنګ د نړۍ وجدان زوروي یا یې ثبات تهدیدوي که دا د ارزانو او په اسانۍ سره دوسلو د تر لاسه کولو له امله نه وی. څنګه چې په عمومي ډول دا غریب دولتونه دي چې د جنګ لامل کېږي د ارزانو وسلو شتون د اوسنۍ نظامي وضعې ډېر خطرناک عنصرونه شوي دي. درې زره کاله دمخه د جنګي بګیو له عصر نه ددرنو وسلو بېړیو پورې جنګونه چې ددغې پېړۍ په سرکې راغلل او لاړل نظامي قدرت د هغوو، چې وسلې یې تر لاسه کولی شوې. نن ورځ بیخې ډېرې ارزښتناکې- وسلې له هستوي وسلونه پرته دډېرې لږې استفادې وړ دي، البته له ډېرو خاصو حالاتو نه پرته. د بېلګې په ډول تر غږ نه ګړندۍ

جیټ الوتکه هوایي امتیاز په برخه کوي خو هغه یوازې هغه وخت چې هوایي امتیاز ډېر اساسي وي او هغه وخت ډېر نه وي په جنګ کې انسان ته د تلفاتو په ورکولو کې له غږ نه ګړندی جیټ الوتکه ډېر لږ ارزښت لري. دهغه رول د ګړندیو موټرونو په مسابقه کې د سرک د ترافیکي تلفاتو د شمېرنې د لمبر یو فارمول سره برابر دی.

دډزو ټوپک چې په خورا ډېرشمېر جوړېږي او بیه یې هم د یوې جیټ الوتکې د یوې ملیونمې بیې په اندازه ده، دهغه په خلاف یو عام افت دی. د هغو پنځوسو ملیونو خلکو نه د ډېرو مرګ چې د شلمې پېړۍ په دوهمې نیمایي کې شوي، په همدغه ارزان ټوپک سره شوی دی. هغه په لوړه اندازه ډز سره د ډېرو د وژل کېدلو لامل دی، په داسې حال کې چې د هغه سپک والی او په اسانه په هغه سره ډز کول حتی ناروزل شوي تنکي ځوانان قادر کوي چې دغومره ډېر وژل وکړي چې پخوا مجربو کسانو هم هغومره وژل کولی نه شول او په دغسې حال کې چې د نن ورځې په غیر رسمي پوځونوکې له هغو نه بیخي ډېر کار اخیستل کېږي.

دغه وسلې دغومره پرېمانه او دغومره ارزانې دي چې زما په نظر مونږ باید اوس د یوې عاجلې موضوع په شان فکر وکړو چې د بې وسلې کولو په بین‌المللي کوښښ کې بل نوښت باید د هغو د توزیع او په پای کې دهغو دتولید د تحدید لپاره وي. دا رښتیا نه ده چې د ارزانو وسلو سوداګري یوه خصوصي تجارتي معامله ده. ډېرې ارزانې وسلې د حکومتونو له خوا بازار ته وړاندې شوې دي او زیاتره یې د سیاسي مقصد لپاره دي نظر دېته چې د سوداګرۍ لپاره وي. باید ومنلی شي چې دوسلو په سوداګرۍ کې ځینې دولتونه د پخواني شوروي اتحاد

غریب دولتونه دي چې غواړي له خپلو زړو وسلو څخه د نقدو د تر لاسه کولو په مقصد ځان خلاص کړي، یاد خپل بې لزومه صنعت تولیدات وساتي. نورو چې اقتصادي وضع یې چندان ښه نه ده درک کړې چې د ارزانو وسلو لپاره تقاضا یوه تشه رامینځ ته کړي چې دوی یې ډکولی شي.

هر څه چې وي – د وسلو سوداګري که سیاسي یا اقتصادي محرک ولري، په ډېره اندازه حکومتي فعالیت دی او چې حال همدغسې دی او دا چې د وسلو د سوداګرۍ نتیجې ټولې بدې او ناوړې دي، لا مصون، لا نفوذ ناک اولا مسوول حکومتونه باید اوس سره لاس یو کړي چې کنترول یې کړي. دا چې د کیمیاوي وسلو د تولید مخه نیول شوې او اوس چې احتمال لري، انسان –ضدماینونه هم کنترول شي، د وړو وسلو د سوداګرۍ محدود کېدل هم ممکن شوي دي.

البته مونږ باید ځان تېر نه باسو، چې یوازې د وسلو د تولید او توزیع تحدید به نړۍ له جنګ څخه وژغوري. په دغه لور بې وسلې کول ضروري ګام دی، لکه په هغو دولتونو کې چې د وسلو د شخصي ملکیت په منع کېدلو سره د وژنې سطح ټیټه شوې ده. په هغو سیمو کې چې د وسلو په کنترول، بې وسلې کولو او د وسله والو پوځونو په تحدید کې مهم ګامونه اخیستل شوي دي، دوسله وال جنګ لږوالی او په واقع کې د هغه پوره نه شتون د پام وړ دی. دغسې سیمې پراخې دي اولاهم پراخېږي. په دغې پېړۍ کې د کرې نظامي نقشه، د هر پخواني وخت په پرتله، لږ جنګ او ډېره سوله ښیي. هغو چې په ملي، بین‌المللي او له ملي سوېې نه د باندې د بې وسلې کولو غورځنګ ته ځانونه وقف کړي دي، د درناوي وړ دي.

خو موږ باید دا هم ومنو چې هغوی چې غواړي وسله ولري، په معمولي ډول يې ترلاسه کولی شي، د جوړولو له لارې یا په تور مارکیټ کې په سوداګرۍ سره او په سیاسي ترفیک سره او په نتیجه کې هغوی چې غواړي جنګ وکړي، کولی يې شي. دغه وضع په وروستي وخت کې په قوم دښمني سیمو کې رښتیا شوې، لکه په روندا (Rwanda) کې چې له اته لک توتسي (Tutsi) قوم نه ډېر يې ووژل شول. داسې هم په هغو سیمو کې چې سیاسي ګډوډي پکې پیدا شوې ده. په پخوانۍ یوګوسلاویا کې، یا په هغه هېوادکې چې دخپل دوسعت په تناسب يې ډېرې وسلې لرلې، کورنی جنګ په هغو وسلو سره وشو. چې له ملي زېرمه تونو څخه په چور یا له ښکیلو باندنیو خواوو څخه تر لاسه شوې.

په دغسې حالاتو کې او تر هغوی چې د ارزانو وسلو خپرېدل تر دقیق کنترول لاندي کېږي، د جنګ مخالفان باید څنګه عمل وکړي؟ حتمي ده چې دوی باید عمل وکړي څکه چې هغومره چې د لوړې درجې جنګ دمسئوولو حکومتونو په ګټه نه دی، د ښکته درجې جنګ هم په هماغه اندازه نه دی. زما په فکر دوی باید دا ومني چې د جنګ د شکل لپاره مسوولیت، هغسې چې په نزدې تېره کې زیاتره وخت تر یوه حده په دوی پورې اړه لرله، د حاضر وخت لپاره هم په دوی پورې اړه لري. د لویو قدرتونو هغه فیصله چې د هټلر پر وړاندې وشوه چې ګوریلایان او پارتیزاني قوتو نه يې وسله وال کړل او هم يې دهغه د ماتولو لپاره کورنی جنګ وهڅوه په اسانۍ سره یو سر مشق شو، لکه هسې چې په ټولې نړۍ کې د آزادۍ ملي غورځنګونه شوي وو او اوس بنسټ پالان او قومي افراطیان همدغسې کوي. دستراتیجۍ له مخې د ورانکارۍ هڅونه یوه دغسې لنډپاري ده چې د اوږدې مودې تاوان يې اوس تادیه کېږي.

تاوان يې د جنګيالي د عزت د ايډيال لـه صفت نـه تېرېـدل شـول. دا دغسـې تېرېدل وو، چې جنګ يې يوځل بيا غير عادي کړ او سبوتاژ، سياسي وژنـه او ټـول وژنه يې په جنګ کې د يوې وسيلې په شان د منلو وړ وګرزوله.

جنګ يو استحالوي فعاليت دی. له دېنه مې مطلب دا دی چې جنـګ خپـل شکل ته تغير ورکوي. په دغه ډول د هغه وړاندوينه زياتره وخت نـه شي کېـدلی له همدې امله ده چې ما په دغو ليکچرونو کې له هغه کوښښ نه ډډه کړې، چې د ماهيت تعريف يې وکړم جنګ دناروغۍ په شان د استحالې دغسـې ظرفيـت ښيي چې د هغو کوښښونو پر وړاندې چې کنترول يـې کـړي، يـاې لـه مينځ نـه يوسي خپله بڼه په ګړندي ډول اړوي. جنګ د کوم ټوليز مقصد لپاره ټوليزه وژنـه ده. زه بس په دغه ډول هغه تعريفولی شم. دوهم نړی وال جنګ ددغسې وسـلې په استعمال سره خپل معراج ته ورسېد، چې د نهايي وسلې پـه نامـه يادشـو او د هغې طرحه داسې وه، چې د ډله ييز وژنې منطقي مقصد يې ګردسره له مينځ نـه يووړ. هستوي وسله په واقع کې د اخـري زهرمـوري يـا زهـردارو (Antidote) پـه شان وليدل شـوه او هغـه تـر اوسـه د هغـې داسـتعمال پرضـد د بالمثـل علاج د زهردارو په شان ثابته شوې ده. هغه د نـورو وسـلو د اسـتعمال پرووړانـدې هسـې چې له هيروشيما نه وروسته استحالوي شکلونه نيـولي دي، د زهـردارو پـه شـان ثابته شوې نه ده.

نو مونږ کومو زهردارو ته سترګي واړوو؟ بايد په ياد ولرو چې جنګ اوس غيـر قانوني دی، خو په هغه حال کې چې د ځان په دفاع کې وي، يا دملګرو ملتونو يـا د بين‌المللي قانون په تفسيرولو سره چې متـاثر کـوي يـې تاييـد شـوی وي، چـې جنګ ګټور لوری دی چې پـه خـوايې حرکـت وشي. پـه هـاګ کـې د بـين‌المللي

محکمې تاسیس چې ددې صلاحیت لري جنګي مجرمان محاکمه کړي یو مثبت انکشاف دی. د ملګروملتونو موسسې د سولې د خوندي کولواو سولې کولو مخ په انکشاف پراختیا په خپله ډېرې مهمې زهرمورې دي. ملګري ملتونه منتقدان او ناکامۍګاني لري او د عراق پېښو د هغه په اړه نوې پاملرنه جلب کړې ده، خو ددغه ماشین له هغو صلاحیتونو نه پرته چې په منشور کې ورته ورکړل شوي دي، نړۍ په ډېره لږه مجهزه وي چې د جنګ مخه ونیسي او کنترول او محدود یې کړي.

څنګه چې مونږ پوهېږو چې هغه غریب دولتونه چې کمزوری کلتوري هویت لري ددې احتمال ډېر دی چې جنګ ته مخه وکړي، یا د غیر مصوونیت د محصول په شان د قومونو تر مینځ د جنګ تجربه وکړي، په دغسې حال کې څه باید وشي چې د هغو هویت او اقتصادي اسودهګي خوندي شي؟ ایا مونږ څه مرسته کولی شو، چې دغسې بې تجربې دولتونه د سیاسي مصونیت او اقتصادي خپلواکۍ پاخه او ثابت حال ته ورسېږي؟ نو د جنګ پر وړاندې زمونږ په جنګ کې ډېره اساسي وسله باید د مرستې او انکشاف په پروګرامونو کې زیات والی او له نورو ملتونو سره پیاوړې اتحادیې وي، چې ددغسې دولتونو اقتصادي جوړښتونه پیاوړي کړي او مرسته وکړو چې سیاسي بې مصوونیتونه یې بې اغیزې شي چې حکومتونه یې د هغو پروړاندې تل مبارزه کوي. یوازې هغه وخت مونږ ورسره مرسته کولی شو، چې د هیراکلیتس هغه عقیده رد کړو، لکه چې کړې موده، چې وایي جنګ یوازې عادل او سمونکی ځواک دی. ځکه چې په نهایت کې دا به نه قانون او نه دهغه د تعمیل یا مدیریت ماشین وي چې د نړۍ سوله به خوندي وساتي او که جنګ زمونږ له کوښښونو سره دمدنیت څنډې یا

له هغې نه اخوا ټیل وهل شو، دا به له دې امله وي چې ملګري ملتونه اراده لري له غیر قانوني قدرت سره په قانوني ځواک سره مخ شي او هغه حکومتونه چې هغې ته دڅه وخت لپاره قانوني ځواکونه ورکوي، چې د عزت او درناوي سرېیان وروزي، معاش ورکړي او وسله وال یې کړي چې حکمونه یې پرځای کوي. د عزت غبړ دروند او زیاتره وخت خطرناک وي او تل په بد ډول ورته جایزه ورکوله کېږي.

هغوی چې دغه غبړ ته ځواب وایي او زه هغوی ښه پېژنم ځکه چې ما خپل ټول بالغ عمر د دوی په ملګرتوب کې تېرکړی دی. دوی په معمول ډول ښه پېژندل شوي هم نه دي. څه وخت چې دوی جنګ کوي، چې دوی یې باید وکړي، دوی ته د ډېرو له خوا په شک سره کتل کېږي، چې دوی ګواکې په جنګ کې خپل مقصد غواړي. هیڅ څیز له واقعیت نه دغومره لیرې نه دی، لکه دغه شک چې دی. له دوی نه پرته هیڅ یو د جنګ ګټې ته په دغسې شک نه ګوري، لکه یو کسبي جنګیالی چې ورته ګوري. هیڅ څوک په فعال ډول ترېنه اوړه نه خالي کوي، لکه دوی یې چې کوي. ((تشدد کله کله یو څیز فیصله کوي.)) دا هغه د یادونې وړ کلمې دي چې مې اورېدلې دي، ځکه چې هغه ماته ددفاعي منصب والو آمر اورولې چې پخوا زمونږ د هېواد تر ټولو مشر نظامي خدمتګارو. په برابره اندازه مونږ دواړه پوهېږو چې کله داسې څیزونه وي، چې هغه وخت چې د تشدد ګواښ ناکام کېږي هغه به یوازې د تشدد په استعمال سره فیصله شي.

تشدد یا له زور نه کار اخیستل، ډېره هیبتناکه وسله ده چې د قانون حاکمیت یې استعمال ته زړه کوي. که مونږ هیله کوو، چې جنګ خپل اخري

حد ته کش شي باید له دېنه ډډه ونکړو چې د عواملو چاره یې وشي. په برابره اندازه مونږ باید تشدد له استعمال نه ډډه ونکړو، هغوعزتمنو جنګیالیو ته ددرناوي له کولونه ډډه ونکړو چې د سولې د خوندي کولو لپاره له قوت نه کار اخلي.

(پای)



# جنګ او د لبرل وجدان وده

## ۱۵۰۰ -۱۷۹۲

## مایکل هاورډ

(یادښت:دغه لیکنه د پروفیسر مایکل هاورډ د کتاب یو فصل دی، په نامه د جنګ او لبرل وجدان. پروفیسر مایکل د انګلستان په اکسفورډ پوهنتون کې تاریخ استاد او د ډېرو آثارو لیکوال دی، دغه اثر رټ ګرن پوهنتون په ۱۹۸٦ کې خپور کړی دی. کاکړ)

احتمال لري نارینه وو، یا لږ ترلږه ځینو نارینه وو او زیاتره ښځو د انساني ټولنې له پیل نه یو وخت بل وخت د جنګ د شتون له امله ویر کړی وي، خو نه په هغو ټولنو کې چې توانېدلي وي، هغه په مذهبي مناسکو یا په خالصې ګټې سره عوض کړي. حتی هغو هم چې جنګ یې مضر عمل ګڼلی وي، ضروري مضر عمل به یې ګڼلی وي، دغسې پېښه چې مسوولیت یې د بل چا په غاړه اچولی، یا یې د خپل مذهب او کلتور د ساتنې یا خپرونې لپاره حتمي فعالیت ګڼلی وي. په عمومي ډول د عیسوي کلیسا دریځ د تاریخ داوږدې مودې په بهیر کې همدغسې و. هغو عیسویانو چې د خپلو عقیدو او د خپلو ټولنو د عمل تر مینځ نه یوځای کېدونکی درز موندلی و، دخپلو عیسویانو په مینځ کې یوه وړه ډله وه. د انجیل (Gospel) تعلیمات په دې اړه په کافي اندازه نا څرګند وواو د عیسویت لپاره د کلیسا سیاست دغومره تحول کاوه چې دغه درز د کلونو په اوږدو کې د بشریت د لویو جنګي دینونو په شان پاتې شو. د کلیسا تعلیمات یوازې هغه وخت مخ په اوښتو شول، چې شاو خوا یې اجتماعي فکرونو

تغير وکړ. څه وخت چې په اتمې او نهمې پېړۍ کې د لويو يرغلونو په مهال د اروپا جنګيالۍ ټولنه ژوندۍ پاتې شوه په دې يې پيل وکړ، چې دمه وکړي او ډول ډول شي، يانې هغه وخت چې د سولې هنر ممکن او مطلوب وګرزېد؛ هغه وخت چې جنګ د پاتې کېدلو لپاره د ټينګ ضرورت په توګه له مينځ نه لاړ، او يوازې د کلتوري عادت په شان شواو هغه وخت چې جنګيالي خواص يا مخکښان نورنو حتمي ساتونکي نه ګڼل کېدل او په زياتېدونکې اندازه د ځپونکي قوت په شان ګڼل کېدل.

ددغسې انتقادي وضعې له لومړيو ليکنو څخه يوه يې هغه ده چې د شپاړسمې پېړۍ په پيل کې د هاليند د يوه روحاني ايراس موس (Erasmus) په ليکنو کې موندل کېدلی شي. د جنګ پرضد د ايراس موس په ترخو انتقادونو کې هغه هيبتناک ضمني تلفات هم يادشوي دي، چې هغه نامعمول نه وو. په خپله هغه د جنګ کومه مهمه تجربه نه لرله. هغه ددغسې يوې نښتې بيان کړی چې د اوکسيلو (Uccelo) له انځور سره ورته دی. د ايراس موس ليکنې د هغه د کوم ملګري د يوه ليک په الهام دي چې په ۱۵۱۲ کې د فرانسې پر ضد د انګلستان د اتم هنري پاچا نظامي عمليات بيان شوي دي.

((...هغه وحشي ملګري چې د هغوی څېرې او چيغې په زړونو کې هيبت غورزوي؛ يا هغه په وسپنې پوښل شوي پوځونه چې د جنګ په ليکو کې قطارشوي، د وسلو ويروونکی ټکر او پړکهار د ډېرو راټول شويو له کرکې نه ډک شور او زوږ، ترټونکې څېرې، زيږه ترمونه، د ترومونو ګونګرې، لېونۍ چيغاوې، د عملياتو قهر جن آوازاو بيالـه يـوه سره قصابي، دوژونکو او وژل شويو بې رحمه مخونه، د وژل شويو خرې، وينې بهېدونکې صحنې، د انسان د وينو سينونه.))

له جنګ نه به دایراس موس کرکه په زیاته اندازه د شخصي پارېدنې او جذباتي شوک نتیجه وي، چې زیاتره وخت همدغسې وي: دهغه د یوه ګران زده کوونکي مړینه د سکاټ لېنډ د څلورم جیمز پاچا زوی، چې یو ښکلی، هوښیار او پوه ځوان و چې له خپل پلار سره یو ځای د فلوډن عملیاتو کې ووژل شو. په ویرنېکې یې ورته کړه چې ((ووایه چې تا د مارس (Mars) له خدایګوټو سره چې تر ټولو احمق دی څه کار و، ته چې موسی(ع) لپاره سپېڅلی شوی وې، نه د عیسی(ع) لپاره ستا ځواني ستا ښکلا ستا مودب طبیعت، ستا رښتینی ذهن د ترومونو له ځلېدلو، ویشتلو او تورو سره څه کارو.))

((د خدایګوټو تر ټولو احمق)): دا په رښتیا یوه نوې افاده وه، جنګ حماقت و، جنګ غیر عقلاني و، نه پرتمین او نه ضروري و. هغو چې پر مخ یې بېوه، د ستاینې وړنه وو، دکرکې وړ وو. ایراس موس له وسله وال کسب نه دغسې کرکه لرله، چې هغه بیا روڼ اندو نسلونو ته سرمشق شو. ایراس موس هغوی په دغه ډول یادول: ((نظامي احمقان، غبي جنګ مشران، حتی نا انسانان مګر په ظاهر کې.)) هغه سرتېري هم په زیږو کلمو یادول: ((په سرتېرو کې هغوی چې په وحشي ډول وژل وکړي، هغه دي چې فکرکېږي، په بل جنګ کې د کفتانۍ وړتیا لري.)) دا دغسې فکر دي، چې د معاصر کلتوري له بنسټ سره وران دی. ده ویل چې له جنګ نه پرته ((د انسان شان دا خولا پرځای پرېږده، چې د عیسوي د شان ته بل ډېر مصیبتناک، بل ډېر پراخ ورانوونکی، بل ډېر ژور نښلېدونکي او بل کرکجن څیز نه شته.)) دغه لومړیتوب په زړه پورې دی. دا په اوله درجه بشریت په خاطر دی، چې ایراس موس جنګ محکوموي. خو ده د جنګ پر ضد عقلاني دلیلونه هم وړاندې کړي دي، چې وروسته په نه تشدد سره د سولې

غوښتونکو لبرلانو– ته عام سرمشق شو. ده دغه نظر وړاندې کړ چې هغه پاچایان چې غواړي خپل پرتم او قدرت وښيي، ښه به داوي چې د خپلو رعيتونو لپاره ښېګڼې او خدمت وکړي، نظر دېته چې د خپلو پولو پراخولو لپاره خپل خلک په مصيبتونو اخته کړي. دده په نظر جنګ ((غيرطبيعي)) و. څاروي له يوه بل سره جنګ نه کوي. ((کوم چاليدلي چې سل زره څاروي به په ګډه منډې کړي، چې يو بل قصابي کړي، لکه سړيان يې چې هر چيرې کوي.)) جنګ يوه پرده ده چې شاته يې حکومتونه په خپلو خلکو باندې خپل قدرت خپرولي شي، ځکه چې ((همدا چې د جنګ اعلام وشو، بيا د دولت چارې ديوځو تنو د اشتها تر ترحم لاندې کېږي.)) ده ته حتی عادل جنګ هم دمنلو نه و، په هغو دليلونو سره چې اوس هم صدق کوي. ده ويل چې ((که د ملکيت ادعا د جنګ کولو لپاره کافي دليل وګڼل شي، بيانو د انسانانو په نا ارام حال کې، چې څومره ډېر تغير کوي، هيڅ څوک به نه وي چې دغسې ادعا ونه کړي. هغه به کوم خلک وي چې يو وخت يا بل وخت له خپل ملک نه شړل شوي نه وي، يايي نور شړلي نه وي.))

دا هغه دليلونه دي چې وار په وار به بيا راوړلی شي. جنګ هم غير طبيعي او هم غير عقلاني دی؛ هه د بدو موخو لپاره له ودانۍ نه دورانۍ لپاره د منابعو ضايع کوونکی انتقال وي.هغه د حکومتونو له خوا انجينري کېږي، ددې لپاره چې خپلې ناوړې موخې تر سره کړي. حتی د ستاينې وړ هدفونه هم هغه وسايل نه ثابتولی نه شي، چې په جنګ کې ترېنه کار اخيستل کېږي. ايراس موس په واقع کې دا نه منله چې دغسې حالات به رامينځ ته شي چې هلته به د جنګ لپاره دلايل پيدا شي او که يو څوک دهغو جنګونو ماهيت په نظر کې نيسي، چې

دده په وخت کې په اروپا کې وشول، دهغه په نظرونو به ښه پوه شي. د منځنيو پېړيو ايډيال يا ارمان چې قدرت بـه د عيسوي نـړۍ او دهغـې دننـه د خـدای تعالی د عدالت د خوندي کېدلو لپاره پـه کـار واچـول شي، د قـوت د عصـري مفکورې د استعمال ضرورت نوی مخ په هسکېدوو،هغه هم په فرعي ډول يـوازې د ماکياولي په اثر کې. جنګ پـه اروپـا کـې د شپاړسـمې پېـړۍ پـه سباوون کـې ترزيـاتې انـدازې پـه نـاوړي او فسخ شـوي شـکل د سـتاينې د نمايشـي مسـابقې موضوع شوې وه.

ايراس موس د هغو ټولو ناوړو پايلو سره سره له دغو سطحي خاصيتونو نه اخو څېړنه ونه کړه. هغه له خپل ټول نبـوغ سره سره يـو ژور سـياسي تحليـل ګرنـه و، داسې هم هغه هيڅکله د قدرت چلولو تمرين نه درلود. خو هغه دانسان پالنې د سوچ والو د اوږده لړ لومړنی سوچ وال و، چې ورته کـافي وه، د جنـګ مصـيبتونه قطار کړي. ددې لپاره چې محکوم يې کړي. دی له هغو سوچ والو څخـه و، چـې د يوه چا انسياقي او احساساتي موافقه به خپله کړي، خـولږه توصـيه بـه وړانـدې کړي، چې له دغسې پېښې سره څه وشي چې دوی يې طبيعت او عقل تـه ډېـر د کرکې وړ بولي.

د ايـراس مـوس د ملګـري تامـاس مـور (Thomas More) لار بلـه وه. تاماس مور د سياسي مسووليت تمرين کړی او په نتيجه کې ممکـن د جنـګ پـه پيچلتوب پوهېده. دی له ايراس موس سره يو خوله و، چې د جنګ په اړه کـوم د وياړ څيز نه شته. دی په خپل اثر يوټوپيا (Utopia) کې وايي چې ددغـه ايـډيالي دولت خلک ((له جنګ نه د يوه څرګند وحشت په توګه کرکه او نفـرت لـري...د نژدې نورو ټولو ولسونو د دود پرضد دوی داسې کوم شرمناک څيزنـه ګڼـي لکـه

هغه ویاړ چې د جنګ په ګټلو کې یې ګټي.)) د یوټوپیا خلک جنګ ته په احتیاط او زړه نا زړه لاړل؛ خو دوی جنګ ته له یو لړ دلیلونو سره لاړل. د هغو زیاتره د عادل جنګ (Jus ad bellum) مفکورې نه راوتلي وو، کوم چې د منځنیو پېړیو په وروستیو کلونو کې معمول شوی و.

جنګ ددښمن د یرغل پروړاندې دیوه چا یا دهغه دملګرو دسیمې ددفاع لپاره مجاز و، ((چې ځینې بېچاره خلک له ظلم نه ډک ځپلو او مریي توب نه آزاد کړي، چې له ملګرو سره مرسته وکړي، نه یوازې په دفاع کې، د ظلمونو په انتقام اخیستلو کې هم.)) په دغو دلیلونو باندې چې زیاتره یې د منځنیو پېړیو په حقوقي منشورونو کې هم موندل کېدلی شول. د یوټوپیا خلکو یو نوی حیرانوونکی او پرځاي دلیل هم پرې اضافه کړ. ((دوی دا د جنګیو پرحق دلیل ګڼي چې که یوولس داسې مځکه لري، چې شاړه او په خپل حال پاتې وي او دوی دا نه مني چې نور یې تر لاسه کړي او وکري، هغه خلک چې د طبیعت د قانون له مخې په هغه ژوند وکړي.)) په دې ډول تاماس مور د وروستیو درې پېړیو استعماري جنګونو ته مخ پر وړاندې په ارامۍ سره کتل. خو د رښتین توب دلیلونه چې هرڅه وي، دی په دې فکرو چې جنګونه باید په هغه ډول ونه شي، لکه د رنسانس خلکو چې وکړل، لږترلږه لکه هسې چې د شمالي اروپا خلکو وکړل. په جنګ کې باید هیڅ ویاړ نه وي او چې څومره کېدلی شي لږه وینه باید پکې تویې شي. جنګ باید دسیاست دوام ویاو د نورو وسیلو د ډېر لږ مخلوط په استعمال سره.

په نتیجه کې تاماس مور او دهغه د یوټوپیا خلک په زړه سواندې بېرحمۍ سره جنګونه کوي. هغه ویل چې دوی ((په جنګ کې دغه یوازنی مقصد لاره چې

هغه څه ترسره کړي چې که دوی هغه بې له جنګ نه په خوښۍ سره ترلاسه کړي وای چې که په وخت کې یې عادل شرطونه منل شوي وای.)) دوی په جنګ کې زیرکۍ ته جایزه ومنله، نه زړورتیا او ویاړته. دوی داخلي ډلې وپارولې او که دغه چارې اغیزناکې نه شوې ((بیا نو دوی د غلیم پر وړاندې ګاونډی ولس پارول او هڅول یې چې خپلې پخوانۍ ادعاګانې وړاندې کړي، هغه څه چې پاچایانو ته یې کمی نه و.)) او که شونې و دوی له اجیرانو څخه کار اخیسته، نظر دېته چې په خپله جنګ وکړي. خو که دوی بیا هم اړشول ((دوی په زړورتوب جنګ کوي، ددغسې احتیاط په قوت سره چې په مخنیوي کې یې کوي ...په جنګ کې د دوی مهارت د دوی زړورتیا ډېر وي او هغه سالم فکرونه چې دوی ته په ماشومتیا کې په روزنه کې اورول کېږي او د کامنولت په ښې موسسې سره د دوی زړورتیا نوره هم ډېروي.))

تاماس مور تر ایراس موس نه لږ انسان پالونکی نه و، دا خو پرځای پرېږده چې لږ عیسوی نه و، خو دی پوهېده چې د جنګ له مصیبتونو نه ژغورنه یوازې د شکایت په کولو سره نه کېږي. دی پوهېده چې جنګ به حتی د یوټوپیا خلکو ته هم یوه ستونزه وي. ده دا ومنله لکه دوه پېړۍ وروسته پوهانو ومنله چې اروپایي ټولنه ددغسې دولتونو په سیستم کې تنظیم شوې ده، چې که یو ګډ حقوقي مقام نه وي، داختلافاتو له لیرې کولو لپاره له جنګ نه خلاصی نه شته؛ نو چې حال دا وي دا دبشریت، ددین او سلیم عقل لپاره یوشان ضرورت دی، چې جنګونه په دې ډول وشي چې څومره کېدلی شي، تاوان یې لږ وي. ډېر وخت نه و تېر شوی، چې د دغې فلسفې جزیات د اولسمې پېړۍ نویو حقوق پوهانو له خوا شرح شول لکه ګروټیوس (Grotius)، پوفندورف (Pufendorf) او

واټل (Vattel). ښه یا بد جنګ دغسې یوه موسسه وه، چې له بین‌لمللي سیستم څخه بیرون کېدلی نه شوه. ټول هغه څه چې په دې اړه کېدلی شول، داوو چې منطقي بنسټ یې تر قانون لاندې راوستل شي او وسیلې یې متمدنې شي.

په دې ډول نزدې دوه پېړۍ تېرې شوې، بې له دې چې د جنګ پر ضد اعتراضونه پورته شي او یو څوک به تعجب وکړي، چې ولې دغسې وشول. د اروپا په لویه وچه کې پوهان او د قلم خاوندان شاید د توري تبې (Black Death) مصیبتونو بې زړه کړي وي، په داسې حال کې چې جنګ په انګلستان کې له حد نه زیات د رقابتي سوداګرۍ د پروسې یوه برخه شوې وه، چې په زیاته اندازه له اروپا نه دباندې کېده. په دغه حال کې په دغې اوږدې مودې کې انسان پالنې ته پاملرنه ونه شوه. خو ددېرش کلونو دجنګ په اړه ځینې اوازونه جګ شول. ګروټیوس په ۱٦۲۵ کې په خپل یوه اثر کې د ((جنګ په کولو کې جواز)) محکوم کړ او ویې ویل چې ((له هغه نه به حتی وحشي ولسونو هم خجالت کړی وای.)) د امریک کروسي (Emeric Cruce) په نامه یوه فرانسوي روحاني، چې تر اوسه هم یادېږي، په زیاته اندازه دهغه وړاندیز له امله چې یې په خپل یوه اثر کې د ملګروملتونو اسامبلې په نامه کړی و، ددې لپاره چې د یوه اجباري منځګرتوب له لارې بین‌المللي کشالې هوارې کړي. هغه هم د ایراس موس په شان جنګ محکوم کړ. هغه د جنګیالیو ژوند د متمدنو ولسونو د شان وړ نه باله او ویل یې چې ((مونږ باید دغسې وحشي عادتونه پرېږدو او انسانانو ته د انسان پالنې او رښتیاني ویاړ طریقه وښیو، ددې لپاره چې دوی دغسې وحشي ژوند کول پرېږدي.)) هغه د ایراس موس په شان خو د تاماس مور او ګروتییس پرخلاف، فکر نه کاوه، چې د جنګ لپاره به هیڅ وخت عادل دلیل

نه وي او جنګونه د غرور او ځناورتوب له دغو دوه ګونو بدیو څخه ولاړ شوي دي. دی دا هم وايي چې تاسې دغه دوه بدۍ ګانې له مینځ نه یوسئ، جنګ به د تل لپاره ترک شوی وي. خو کروسي د جنګ د اصلي علت په اړه ډېر ژور تللی له دېنه ډېر چې ممکن دغه ساده تحلیل یې ښکاره کړي. دی دهغو پوهانو له لومړیو ډلې څخه و، چې درک یې کړه چې د جنګ حادثه ممکن دټولنې له جوړښت سره تړاو ولري او دا چې دغه جوړښت ممکن بدل شي. ده داسې وګڼله چې جنګ ځکه کېږي، چې ((سړي په خاص ډول د جنګ سرکښان په طبیعي ډول له ارام حال سره بې طاقتي کوي. بیانو د جنګ د له مینځ نه وړلو لار دا کېږي چې د اجتماعي جوړښت توازن ته په سوله ییز کسبونو سره تغیر ورکړل شي – کرنه، سوداګري او مېخانیکي او لبرلي هنرونه. خوده دا هم ومنله چې ((د جنګیالیو روحیې به په پوره ډول له مینځ نه وړل کېدلی ونه شي، خو هغه به ددغسې واړه پوځ په خدمت کې اچول کېدلی وشي، چې اساسي وظیفه به یې د سمندري غلو او وحشیانو پروړاندې جنګ وي.)) په پای کې دغه سوله ییز کسبونه به د سوداګرۍ په پوره آزادۍ سره په ډېر ښه ډول وهڅول شي. سوله به سوداګري وهڅوي او سوله به سوداګرۍ ته وده ورکړي. ((د تک راتګ اړیکې باید په ټولو ځایونو کې سره برابرې وي، په تېره په عالمي سولې کې چیرته چې موضوع له ټولې نړۍ سره د ښو اړیکو خوندي کېدل وي.))

دلته د لومړي ځل لپاره دغسې موضوع راپورته شوه چې په دوه وروستیو پېړیو کې یې د جنګ په اړه په لبرلي تفکر اثر وکړ. جنګونه چې وشول په سبب د بین‌المللي ناپوهۍ او په سبب د جنګي طبقې لاس بری و. د دواړو لپاره ځواب په بین‌المللي سولې کې وموندل شو- سوداګري چې جنګ ته دمتمایلو

ارستوکراتو په تاوان بـه د ټولنې د سوله خوښوونکو او توليـدي پرګنـو شـتمني اوقوت ډېر کړي، ځکه چې سوداګري به د ډول ډول ولسونو خلک له يـو بـل سره تل په تماس کې کـړي. دغسـې نـژدې کېدنـه چې ټولـو تـه بـه د دوی د ټـولنې اساسي ګټې څرګندې کړي.

په دغه ډول کروسي په اقتصادي انکشاف کې هغه څـه وليـدل چـې وروسـته ادم سمت (Adam Smith) هغه ((دنه ليدونکي لاس)) په نامه يادکړل، په اوږده موده کې د جنګ کشالې هوارول. ده تـر هغـه دمخـه د ايـراس مـوس يـا ترهغـه وروسته د کابډن (Cobden) نه زيات د هغو ستونزو درک ونکړ، چې په خپله پـه دولتي سيستم کې نغښتې وي- هغه سيستم چې ممکن دوام وکړي او د واکمنو له مخالفت نه غير هم چې په ځانګو کې به يې خـدمت کـوي، د جګـړو او نښـتو لامل وګـرزي. ډېـر عنعنـوي سـوچوالان حتـی د نبـوغ دغسـې وتـلي کسـان لکـه فرانسـس بـيکن (Francis Bacon) او جـان لاک (John Locke) هغـه دغسـې يـو مسلم څيزوګاڼه چې په خپلو آثاروکې پر هغه د يوې اخلاقي مسألې پـه شـان ونـه غړېدل. دواړو هغه د يوې ګډې محکمـې پـه نشـته تـوب سره چـې ملتونـه ورتـه رجوع وکولی شي، يو پوره عقلاني فعاليت وباله. لاک دغومره وويـل چـې ((د يـوه با صلاحيت منځګړي په نشته توب سره ټـول انسـانان د طبيعـت پـه حالـت کـې داخلېږي)) او دا چې ((په يوه کس باندې د ناحقې قوت کـه يـو قـاضي وي يـا نـه وي د جنګ حالت رامينځ ته کوي.)) حکومتونه نه يوازې حق بلکـې وظيفـه لـري چې ((د ټولنې له قدرت نه کار واخلي ...په خارج کې دباندنيو مصيبتونو چاره او مخنيوی وکړي او خپلې ټولنې له يرغلونونه خوندي کړي.)) پـه دې ډول سـياسي سوچ والو تر اتلسمې پېړۍ پورې جنګ ددغسې يوې ضروري بدۍ په شان وليـد

چې له اجتماعي جوړښت نه راولاړېږي، چې هغه په خپله د نورو غمو بدیو د مخنیوي لپاره ضرور ګڼل کېده. د همدغې پېړۍ په بهیر کې وو، چې دغه نظر ته په مهارت سره تغیر ورکړل شو. جنګ به د ټولنیز جوړښت پایله وګڼله شي خو دا باید د ټولنې محکومولو ته یو علت وګڼل شي، نه د جنګ په حقه ښودلو ته. مانتسکیو (Montesquieu) د خپل روح القوانین (۱۷۵۰) په پیل کې دغه ټکی وړاندې کړ چې جنګ غیر طبیعي دی، ځکه چې د تاماس هابس د نظر پر خلاف انسان د طبیعت په حال کې تر ټولنې نه د مخه له حد نه دغومره ډېر ډارن وي، چې جنګ ته لاس واچوي دی د یوه کس په شان په ټولو ګارویو کې یو ډېر بې دفاع موجود دی. خو ((دی همدا چې د ټولنې په چوکاټ کې ننوځي خپل د ناتوانۍ احساس له لاسه ورکوي؛ برابري له مینځ څخه ځي او بیا د بېلو ټولنو تر مینځ د جنګ حالت رامینځ ته کېږي.)) مانتسکیو په خپله دا یو حتمي څیز وباله او هغو نتیجو ته ورسېد، چې تاموس مور دمخه ورسېدلی و:((دولسونو قانون په طبیعي ډول په دغه پرنسیب بنادی، چې د سولې په وخت کې مختلفو ولسونو ته ښایي یوبل ته هغومره ګټه ورسوي چې یې په وسه کې وي او د جنګ په حال کې بې له دې چې خپلې اساسي ګټې له نظر نه وغورزوي، هغومره لږ ضرر ورسوي، چې ممکن وي.)) د جنګ په حق توب له ضرورت او محدود عدالت نه راووت او ((که هغوی چې وجدان یا د پاچایانو شوراګانې اداره کوي، ددغه پرنسیب رعایت ونه کړي پایله به یې ډېره خطرناکه وي: څه وخت چې دوی په خپلې خوښې سره د خپل حیثیت، اسانتیا او ګټې پر پرنسیپونو وړاندې درومي د مځکې پر سر به د وینو سیلاوونه روان وي.))

خو ژان ژانک روسو د خپل برابري په نه شتوب اثر کې یوه بله پایله په ګوته کړې ده. دی له مانتسکیو سره په دې اړه یوه خوله دی، چې انسان په اصل کې سوله خوښوونکی او ډارن و، او یوازې عادت او تجربې هغه ته ممکنه کړه چې جنګ وکړي: ((دا وروسته له هغه ده چې دید ښاري یا د مدني حقونو څښتن (Citizen) شي، سرتېري کېږي.)) د هغه په نظر جنګ د یوه ناڅاپي هیجاني وضع موضوع نه ده ((بلکې ددایمي حالت (موضوع ده)... چې ثابتې اړیکې یې پخوا له پخوا موجودې وي.)) نو دا یوازې د اجتماعي کسانو په منځ کې ممکن کېږي یانې چې ((د اخلاقي کس چې یو څوک یې واکمن (The Soverign) بولي چې هغه د ټولنیز قرار داد پر بنسټ هسک کېږي او هغه غواړي د قانونو نوم ولري.))

خو روسو دا نه منله چې جنګ به په کوم عقلي ((ملتونو قانون)) سره کنترول یاله منځ نه یووړل شي. ډېریا هیڅ نه شي کولای د قدرت لپاره رقابتي مبارزه سپکه کړي کومه چې دولتي سیستم په جوړښتکې نغښتې وي. د حل لار تر هغه لاکم په هغه ډول بین‌المللي سیستم کې موندل کېدلی شي چې ابي سان پرې (Abbe Saint-Pierre) د هسپانیې د ځای ناستي جنګ نه وروسته په خپل یوه اثر کې وړاندې کړې ده، چې هغه ددوه اړخیز امنیتي قرارداد له لارې د موجودې وضعې ددوام لپاره یو کوښښ و. روسو ددغه اثر په یوه چاپ کې د سان پیري وړاندیزونه د هغه تر لیکونکي نه په ښه وضاحت سره شرح کوي، خو بیایې په یو څو ضربو سره هغه ټول له منځ نه وړي دي. ده ویل چې ښه نه ده چې دغسې وړاندیزونه وشي چې د اروپا د هر حکومت د څرګندو ګټو پرخلاف وي. بدي باید له بیخ او ریښې نه له منځ نه یووړله شي – په خپله ټولنیز قرار

داد. ((که ټولنيز قرارداد په يوې ضربې سره له مينځ نه وړل کېدلی وشي، نور به جنګ سمله لاسه نه وي. دولت به په يوې ضربې سره ووژل شي، بې لـه دې چـې يو کس هم مړ شوی وي.)) دا به هسې ناکراري خلق نـه کـړي چـې هـابس ترېنـه ويرېده. روسو فکر کاوه چې د ((هابس او فيلسـوفانو تېروتنـه دا ده چـې طبيعـي خلک يې له هغو خلکو سره ګډ کـړي، چـې د دوی تـر سـترګو لانـدې وو او هغـه سيسـتم تـه خلـک انتقـال کـړي، چـې پـه يـوه بـل کـې اوسېدلی شي.)) جنګيـو اجتماعي شرارت و او علاج به يې يوازې د هغو اړيکـو پـه پرېکولـو سره وشي چـې ټولنه يې سره تړلې ده.

روسو بې له شک نه د خپل دغه حل پروړاندې کولو سره ملنډې وهي، خـو دا هغه حل و، چې په هر نسل کې خوښ ايسېدونکی يا ناهيلو ته جذاب و، کـه څـه هم هغه ددغسې علاج د نسخې پـه شـان و، چـې د ساينس (Sinus) د ناروغتيـا علاج د سر په پرېکولو کې ويني. حتی که يو څوک په خپله د روسو دليلونه هـم مني دهغه لومړني انسان ښېګڼې چې په طبيعي حال کې اوسېده، هر څه چې و، هغه سمله لاسه هغه چاته د نوي په شان ښه ښکاره شي، چـې دهغـو اجتماعـي اړيکو په له مينځ نـه وړلـو سره چـې د هغـه د خپـل بيـان لـه مخـې انسانانو تـه منحصر کړي او دوی له هغه ورځې نه چې ټولنـه يـې تنظيم کـړي، فاسـد کـړي دي.له همدغو نيمګړو مخلوقاتو سره و، کوم چې هابس تر ((خپلو سـترګو لانـدې نيولی)) او دهغه له نيمګړتياوونه يې عمومي حکمونه کـول، چـې يـو سياسـتمدار بايد ورسره چلند وکړي او ددغسې خلکو هغه ظرفيـت چـې پـه هغـه ((طبيعـي)) حال کې، کـوم چـې د روسـو پـه فکـر هغـه تـه بېرتـه ورتـګ وشي، ډېـر مشـکوک ښکاري. د روسو د نورو حيرانوونکو فکرونو په شان دا هغه فکـر دی، چـې د ډېـر

دقیق امتحان طاقت نه لري او په خپله روسو لومړی کس و، چې د هغه درک یې وکړ.

روسو د حکومتونو، پاچایانو او دهغوی د وزیرانو د ذاتي ګټې په محکومولو سره د لبرلي تفکر له عمومي بهیر سره چې په خاص ډول د اتلسمې پېړۍ په بهیر کې په فرانسې کې مخ په قوت و، ملګرتوب وکړ. دغه فکر چې جنګ د اجتماعي اړیکو له ناقصې طرحې څخه نه، بلکې د سیاستوالو، نظامیانو، پاچایانواو دیپلوماتانو له قصدي دسیسو څخه پیدا کېده، تاریخي ریښې لري. لکه چې مونږ ولیدل هغه لږترلږه ایراس موس ته رسېدلی شي. په فرانسې کې د تنور په دوره کې هغه په دوه څرګندو دلیلونو د روڼ اندی نزدې منل شوې عقیده کېدله.

لومړی دا چې ددرې ګونې عنعنیزې طبقې (روحانیان، اشراف او عوام) د نفوسو ناممتازې ډلې چې زیاتره فیلاسوفان (Philosophes) له هغې څخه راولاړ شوي وو،دغسې یوه ډله وه چې له واقعي سیاسي قدرت نه بې برخې وو، په یقین سره د نظامي پالیسۍ او باندنیو چارو له تر سره کولونه. دا هغه وروستی انحصار و، چې د محکمې له خوا لغوه شو. دا هم یقیني وه، چې د ارستو کراسۍ سلوک ترتیبونه او ترڅه حده د کسب او کار چانسونه د جنګ منلو یا عمومي ذهنیت له خوا دیوې نورمالې اجتماعي حادثې په شان شکل موند او جنګ لکه هسې چې په اروپا کې د اولسمې پېړۍ له نیمایي نه وروسته انکشاف کړی و، د همدغې طبقې لپاره ډېر د منلو وړ و او ویل کېدلی به وشي چې د هغو د عادي ژوند طرز د نا ارامۍ توسعې نه ډېر لیري و. استدلال به کېدلی وشي، چې د اروپا ځینو طبقو د وستفالیسولې[۳](Peace of Westphalia)

نه وروسته د اولسمې پېړۍ له پیل راهسې جنګ د ګډوډۍ په لړولو کې او دیوه معقول نظم په رامینځ ته کولوکې ښه بریالی رول ادا کړ. له یوه نظر نه هغه پراخ دیپلوماتیکي رسم یا پروتوکول چې د څوارلسم لویي نه وروسته انکشاف کړی و، د قدرت د انډول د مفکورو پر بنسټ د سیاست محاسبات او جنګونه چې په ډېر پېدونکو اندازو د کسبي پوځونو له خوا کېدل او دوی به چې کله جنګ نه کاوه، له یوه بل سره به یې مودب سلوک کاوه- دا ټول یې دعقل، مدنیت او نظم د بري په شان لیده په تېره هغو چې پخواني سلوکونه یې په نظر کې نیول. خو هغه داسې هم د هغو له خوا چې پکې یې ګډون نه کاوه د کرکې وړ او د غیر ضروري لوبې په شان کتل کېدل چې بل مقصد یې نه لاره پرته له دې چې قدرت وساتل شي او د لوبو کوونکوته اجوره ورکړل شي. فیلاسوفانو خوښي نه ښووله چې جنګ به په نسبي ډول یوه متمدنه عملیه شوې وي. دوی اعتراض کاوه چې دغه وحشي عمل څنګه دغومره ډېر دوام کړی دی.

دوهم دلیل داو چې په ډېرپېدونکې اندازې مالومېدله چې د اتلسمې پېړۍ په اروپاکې، په خاص ډول فرانسې ته جنګ په ګټه نه تمامېدو. کولبرت (Colbert) د څوارلسم لویي په وخت کې په قاتع کوونکي ډول ویل چې جنګ، شتمنیاو دولتي قدرت نژدې یو مفهوم لري. انګلیس اقتصاد پوهانو هم په همدغه ډول ان تر اتلسمې پېړۍ پورې استدلال کاوه، په داسې حال کې چې پاچایي سمندري ځواک د کریبیا په ټاپوګانو کې هسپانوي انحصار له مینځ نه یووړ او فرانسویان یې له هندوستان او لویدیځ انډیز (غرب الهند) څخه په زور بیرون کړل. خو د کولبرت سیاست اروپا وپاروله او د ۱٦۸۹ او ۱۷۱۳ تر مینځ د پنځه ویشت کلونو جنګ کې فرانسې ته ډېر تاوانونه ورسېدل. بیا نو دا عجیب

نه و، چې د فرانسې اقتصاد پوهانو خپله لهجه بدله کړه. حتی پخوا لـه دې چې ادم سـمیت او فزیوکراتـان[۴] خپلـې مهمـې خپرونـې وکـړي د مرکنتلـزم (Mercantilism) ټول سیاستونه د ډېرولیکوالو له خـوا تـر انتقـاد لانـدې ونیـول شول. دغو سوچ والو په ټینګـه ویـل چې د جنـګ او سـوداګرۍ روحیـې سره پـه تضـاد کـې دي او هـیڅ څـوک لـه جنـګ نـه ګټـه کـولی نـه شي. البتـه لـه څـو قراردادیانو او دوسلو له جوړونکو نه پرتـه. دوی ویـل چـې څنګـه چـې اقتصـادي سیالۍ د جنګونو د قوي مرستیال علت وي، سوداګري باید آزاده وي. د اتلسمې پېړۍ تر نیمایي پورې ټول هغه څه چې په فرانسـېکې فرانسـوا کـوزني، تورګـو او فزیوکراتانو ته او په انګلستان کې ادم سمت او دهغه پلویانو تـه میسـر وو، هغـه دوی په یوې جامعې تیورۍ کې ځای کړل. د طبیعت قوانین همکـاري، همغـږي او توافق غواړي. آسماني قدرت انسانان د دوه اړخیزو ضرورتونـو پـه ځنځـیر سره تړلي او پخوا له پخوایې د اقتصادي ګټو ټکـر نـاممکن کـړی دی. د دغسـې ګټـو ناسم درک و (چې مارکسستانو وروسته د ناسم شعور په نامه یاد کړ) چې نتیجـه یې جنګ شو. بیانو کوزني په ټینګار وویل چې دا باید د ښه حکومـت مقصـد وي چې د جنګ ټول ممکن علتونه له مینځ نه یـوسي او تـر څـو چـې کېـدلی شي پـه ځانګړې توګه د شتمنۍ په تولید تمرکز وکړي.

خو تر هغو چې حکومت د جنګي طبقـو پـه لاس پـاتې وي، دغـه سیاسـت بـه څنګه دوام وکړي په داسې حال کې چې هغوی غواړي د فیوډالي فکرونو په لرلـو سره خپل ژوند طرز اوږد کړي؟ حتی مانتسکیو خپل د جنګ تحلیل چـې هغـه د انسـان د اجتماعـي حالـت نتیجـه ده پـه یـوې زړورې او غـیر تـاریخي وینـا سره مقیده کړه اوهغه دا چې ((د پاچایۍ روحیه جنګ او د پاچایۍ پراختیـا ده؛ سـوله

او اعتدال د ولسمشرۍ ملګري دي.)) دغه فکر په پروس کې ایمانویل کانت د تلپاتي سولې (Perpetual Peace) په نامه اثر کې څرګند کړ. د هغه په فکر د دولتونو تر مینځ د تلپاتې سولې لومړی شرط دادی چې ((مدني اساسي قانون باید په هر دولت کې ولسمشري وي ...که دمدني فردونو رضایت ضرور وي هیڅ څیز دغومره طبیعي نه دی چې دوی به پخوا له دې چې په دغسې هیبتناکې لوبې پیل وکړي خورا ډېر فکر وکړي))؛ په داسې حال کې چې واکمن ((په خپلو مېلو، چړچو سپورتونو، د ماڼیو اسودګي، یا د دربار جشنونو کې د جنګ په وخت کې کمی نه راولي او جنګ لا په یوې وړې پارونې سره هم د یو ډول ساعت تېرۍ په څېر اعلانوي.))

د جنګ او سولې په اړه د کانت نظرونه تر هغې نه چې دغه لنډه وینایې څرګندوي، ډېر دقیق وو او ناممکنه ده چې په دغه لنډقول نقل ورسره عدالت وشي. له یوې خوا هغه د طبیعي حالت په اړه، د مانتسکیو د نظر پر خلاف، د هابس دا په نظر کې ونیوله او ویې ویل چې ((د سولې حالت د انسانانو په مینځ کې چې سره یو ځای اوسېږي طبیعي حالت نه دی؛ ځکه چې طبیعي حالت دجنګ حالت وي، یانې که حالت د څرګندو جنګونو نه وي بیا هم هغه ددوام لرونکي تهدید حالت دی. د سولې حالت باید حتماً مینځ ته راوړل شي.)) له بلې خوا کانت په دې نظر و، چې جنګونه په خپل ذات کې په اوږده موده کې ددغسې سولې مقصد ته خدمت کوي، ځکه چې ((...له حد نه ډېر او د هغو لپاره دنه عملي شویو ترتیبونو له لارې، د نه شته توب له لارې چې له هغه وروسته به هر دولت حتی د سولې په مینځ کې د هغه احساس کوي، طبیعت هر انسان هڅوي چې کوښښونه وکړي، که په پیل کې کافي هم نه وي، د

وحشيګرۍ د بې قانوني حالت ترک کړي او د ملتونو په اتحاديې يا ليګ کې شامل شي، چيرته چې هر دولت، حتی ډېر کوچنی به هم د خپل مصوونيت او د خپلو حقونو هيله وکړي –نه يوازې له خپل قدرت نه، يا دهغه له حقوقي نظرونو نه، بلکې يوازې د ملتونو له دغه ستر ليګ نه، له يو موټي شوې قدرت نه او د قوانينو له مخې د متحدې ادارې له پرېکړې نه.))

نو د کانت په نظر ((يو نه ليدونکی لاس)) کوښښ کاوه چې که حتی د جنګ له لارې هم وي، په پای کې يو همغږی ((دايمي سوله)) راولي. خو په نتيجه کې هغه جنګ داسې نه ګاڼه چې په هر مفهوم وي، پرحق به وي. د هغه پرخلاف جنګ هغه ته د اخلاقي قانون پرضدو. د ((جنګ قانون)) د هغه په فکرځان – نفي کوونکی و. داسې هم د هغه په نظر د جنګ حتمي توب هغه دمنلو وړ نه ګرزوي، ځکه څنګه چې تلپاتې سوله تر ټولو لوړ ښه توب دی ((دا زمونږ وظيفه ده، چې ددغسې موخې د ايډيال لپاره عمل وکړو (چې عقل يې غواړي) حتی که دهغه لپاره ډېر لږ احتمال هم نه وي چې تر سره به شي.)) په واقع کې هغه غوښتل چې ((د سولې عام او تلپاتي رامينځ ته کول، نه يوازې يوه برخه بلکې هغه د سوچه عقل په چوکاټ کې د حقونو د تيورۍ ټول انجام او موخه تشکيلوي.)) نو د کانت په نظر د سولې لپاره کوښښ په خپل ذات کې يو اخلاقي مطلق شرط دی. په دې ډول کانت د ((ولسمشرۍ اساسي قانون)) يا هغه چې نن ورځ يې مونږ د ((مسوول حکومت)) په نامه ياد کړو ((د سولې حالت)) د تاسيس يوه اصلي برخه ده؛ دغسې يو اساس چې له هغه نه انسان نه يوازې د دولتونو د بين‌المللي سيستم په لور چې د قانون پر بنسټ به چلېږي، وړاندې تللی شي، بلکې دغسې بين‌المللي ټولنې ته (هم) چې ټول انسانان به يې آزاد حقوقي غړي

وي. خو روسو د ((مسوول حکومت)) په ملاتړ یو بل دلیل وړاندې کړ، هغه چې ایراس موس د مخه وړاندې کړی و، که څه هم هغه پایلې یې نه وې واضح کړې، چې هغه روسو دسان پیر د یوه اثر په اړه ویلي وو، چې ((د پاچایانو ټول کارونه، یا د هغو چې دوی یې موظف کوي، یوازې د دوه مقصدونو په اړه دي، چې دباندې د هغو واکمني پراخه کړي، یا دننه په وطن کې یې نور هم مطلق وګرزوي.)) د دوی لپاره جنګ حتمي وو، چې په خلکو باندې خپله واکمني ټینګه کړي.)) په نتیجه کې ((فاتح پاچا زامنان جنګ کوي لړترلړه هغومره په خپلو خلکو باندې، لکه په باندنیو دښمنانو باندې.)) که دا رښتیا وای چې د مطلقیت مقصد د جنګ د ختم مانا کېدلای بیانو سرچپه یې هم سمه کېدلای شوه. د جنګ الغا به د وجود دلیل (Raison d’etre) او د حکومتونو د کنترول میکانیزم ته دغسې یوه اخلاقي څپېړه وي چې هغوی به هیڅکله پرې رضایت ښکاره نه کړي. بیانو روسو ددغسې طرحو، لکه د سان پیر د دولتونو لیګ ته دغسې راتلونکی نه لیدله چې هغه به غوره شي، خو یوازې د انقلاب په نتیجه کې. ((ددغسې ګنېې)) له مخې هغه د یوې وچې تبصرې په ډول وویل چې ((له مونږ نه به څوک زړه وکړي چې ووایي چې که دغه اروپایی لیګ به زیات مطلوب یا د ډار وړ وي.))

په دې ډول د اقتصاد پوهانو دغه ایډیا چې جنګونه د هغې ناکامۍ نتیجه وي، چې د طبیعت د اساسي همغږۍ درناوي وشي او چې د هغو ټولو اړخونو ته قانوني رنګ ورکړل شي. فلاسوفانو (Philosophes) له نظر سره یو شو چې جنګ د واکمنو طبقو، یا ددرېیمې طبقې پر ضد د ارستوکراتو په ګټو کې ریښې لري او چې هغه به هیڅکله له مینځ نه لاړ نه شي، خو هغه وخت چې دغه طبقې

نسکورېږي شي. ددغې وروستي ښوونځي تر ټولو افراطي او ټينګ غړی کانـدورسي (Condorcet) و، چې تل يـې دغـه نظـر وړانـدې کـاوه چـې ((خلـک)) تـل سـوله غـواړي او هغـوی يـوازې دواکمنـو لـه خـوا جنـګ تـه مجبـورېږي. ددغـه حـال مسووليت په اوله درجه ددېپلوماتانو پـه غـاړه دی. تـر اوسـه دوی ددې پرځـای چې د جنګ مخه يې نيولې وي، پارولي يې دي. د هغـه ديـوه هـم مهـال پـه نظـر ديپلوماسي ((يو پټ هنر دی، چې په دوسيو کې ځـان پټـوي اولـه دېنـه ويرېـږي چې وليدل شي او عقيده لري چې د رمـز پـه تيـاره کـې بريـالی کېـدلی شي.)) د کاندورسي په نظر اتحادېې ((يوازې وسيلې دي چې د دولتونو چلوونکي دهغو لـه لارې خلک جنګونو ته کشوي چې له هغو نه دوی ګټه تـر لاسـه کـړي يـا د خپلـو تېروتنو په پټولو سره د آزادۍ پرضد خپلې دسيسې پرمخ بـوځي.)) پـه يـوې نـوې نړۍ کې چې په عقل او اخلاقو سره به اداره کېږي ديپلوماسۍ ته به بيا اړتيـا نـه وي.

په همدغسې حال کې د اتلانتيک اخوا يو نوی دولت مخ په هسـکېدلو و. پـه کال ۱۷۸۱ کې جان ادمز د امريکـې متحـدو دولتونـو سـفير د شپاړسـم لـويي پـه دربار کې د فرانسې بانـدنيو چـارو وزيـر تـه خـبر ورکـړ چـې ((د شـمالي امريکـا حيثيت په ديپلوماتيکي تشريفاتو کې يا ددربار په هيڅ مراسمو کې نه دی؛ هغـه يوازې په عقل،ع دالت رښتين توب، د انسانانو په حقونو او د اروپا د ولسـونو پـه ګټو کې ځای لري.)) داسې ښکارې دله چې د فلاسوفانو خوب رښـتيا شـوی دی؛ دلته په پای کې دغسې ولسمشـري هسـکه شـوې وه، چـې پاچـا واکـي او ارسـتو کراسي يې په لغته وهلې او تجويز يې کړی و، چې خپل سياست په عقل او سولې بنا کړي، دغه حقيقت چې هلته به دغسې ولسمشري نـه وای چـې کـه هلتـه يـو

اوږد جنګ نه وای او دا چې دغه جنګ ممکن له فرانسې سره د اتحاد نه پرته وړل شوی نه وای، چې هغه په دقیق ډول په دغو تشریفاتي رسمونو رهبري کېده، چې فلاسوفانو محکوم کړي وو، دغه وخت داسې نه ښکارېدله چې هغه به خلک نا ارام او وارخطا کړي.

دغه عقیده چې دامریکې متحد دولتونه به د نړۍ لپاره یو نوی نظام وړاندې کړي، د اروپا ډېر څرګند غبرګون د تاماس پین (Thomas Pain) هغه اثر شو چې د انسان د حقونو (The Rights of Man) په نامه خپور شو (۱۷۹۳). پین په هغه کې دغه نظر وړاندې کړ چې ((حکومت د زاړه سیستم له مخې د قدرت تر لاسه کول دي، د خپلې واکمنۍ د پراختیا لپاره؛ د نوي سیستم له مخې د ټولنې د عامه ښېګڼې لپاره د قدرت سپارل دي.)) لومړني د سیستم د ساتلو سره دخپل ځان ملاتړ کوي؛ وروستي د ولس دشتمن کولو لپاره د رښتینې وسیلې په توګه د سولې سیستم ته وده ورکوي. هغه څرګنده کړه چې دغه نوی سیستم اوس یوازې له اتلانتیک نه اخوا موندل کېدلی شي. ((هغه چې اتن په واړه ځان او امریکا به په غټ توب سره دي. یو یې دپخوانۍ نړۍ تعجب و، بل یې د اوس حیرت دی.)) یو ځوک د انسان حقونو اثر کې دهغو فکرونو ترکیب مومي چې مونږ په دغه څپرکي د هغه تکامل بیان کړی دی، چې هغه دې په دغسې صراحت او په دغومره ډېر قوت سره یو ځای کړي چې په واقع کې هغه لبرل او سوشلست چې تر هغه وروسته یې د باندني سیاست په اړه لیکنې کړې دي دپین په لومړنیو ترخونیوکو به یې لږ څه نور اضافه کړی وي. پین د کوزني په پلوي استدلال وکړ چې د انسان د عمومي خوارۍ او بدحالۍ علت ((د مدنیت د پرنسیپونو په نیمګړتیا کې پروت نه دی، بلکې د همدغو پرنسیپونو د

عمومي پلي کېدلو په مخنيوي کې دی؛ چې پايله يې د جنګ دايمي سيستم او لګښت دی، چې هېواد وچ کوي او هغه عمومي نېکمرغي مغلوبوي چې د مدنيت د هغه مستعد دی.)) د ادم سميت په پلوي د پين ځواب په سوداګرۍ کې و: ((که سوداګري په عالمي اندازه وشي، چې مستعد يې دی، هغه به د جنګ سيستم له بيخ نه وکاږي او د نامتمدن دولت په حکومتونو کې به انقلاب راولي.)) د روسو په پلوي دهغه په نظر ((د زاړه جوړښت پربنا د حکومت سيستم (کې ده ځکه) چې هغه دښمنۍ چې ملتونه يې ديوه بل پروړاندې کوي، نورڅه نه دي، خو هغه چې د دوی حکومتونو سياست يې پاروي ددې لپاره چې ددغه سيستم روحيه ژوندۍ وساتي. هر حکومت هغه بل په خيانت، دسيسې، غدر تورنوي. د يوې وسيلې په توګه چې د خپلو ملتونو خيال تود وساتي او دښمنيو ته يې په غضب کړي. انسان د انسان دښمن نه دی، خو د حکومت د بد سيستم د وسيلې له لارې.))

پين د مانتسکيو اوکانت په پلوۍ په دې عقيده و، چې د ولسمشرۍ په موسسه کې هيله پرته ده. په ۱۹۱۷ کې يې وليکل چې ((په هغه شېبه کې چې په فرانسه کې د حکومت بڼه بدله شوه، په نوي حکومت کې د ولسمشرۍ د سولې او د داخلي شتمنتوب او اقتصاد پرنسيپونه ښکاره شول اود نورو ملتونو لپاره به هم همدغسې پايلې ولري. ديو کال وروسته په دې فکر شو چې سباوون راتلونکی دي. ((په انسان باندې دحکومت په موضوع کې دعقل دغسې سباوون راتلونکی دي، چې دمخه نه وليدل شي. څنګه چې د اوس مهال د زړو حکومتونو وحشت له مينځ څخه ځي د ملتونو اخلاقي حالت به ديوه بل

پروړاندې تغير وکړي. انسان به په دغسې وحشي فکر سره ونه روزل شي چې خپل نوع دښمن وګڼي.))

ددغو کلمو له خپرېدلو نه لا څو مياشتې نه وې تېرې شوې چې فرانسې او ګاونډيانو يې د پنځه ويشت کلونو په بهير کې دغسې هيبتناک جنګونه سره وکړل او د اروپا په ټولو ملتونو کې يې دغسې ژوره کرکه وپاروله چې مثال يې تر هغه وخته نه و ليدل شوی. کوم هغه سهار چې د فرانسې په انقلاب سره راښکاره شو، هغه په يقين سره دعقل سهار نه و، دا خو لاڅه کوې چې د سولې سهار وي.

(پای)

# د کلاشنکوف توپکونه او د توماهاک راکټونه

## مایکل هاوړډ

(یادښت:دغه وړه لیکنه هم د پروفیسر هاوړډ ده، چې د هغه د یوه بل کتاب دیوه څپرکي نه را اخسیتل شوې. دکتاب نوم دی ((د سولې اختراع))، د جنګ او بین‌المللي نظم په اړه سوچونه. دغه اثر په ۲۰۰۰ کې د ییل د پوهنتون له خوا خپور شوی دی.کاکړ)

د شلمې پېړۍ په وروستۍ لسیزه کې داسې ښکارېدله چې د تنور ددورې لبرل وارثان به یو ځل بیا سوله خوندي کړي. لیرې لیدیې تر هر بل وخت نه روڼ ښکارېده. د هغسې ګډوډیو او متضادو هدفونو نښې هم هیڅ نه لیدل کېدلې، چې په ۱۹۱۸ کې یې دیوې رښتینې فیصلې مخه نیولې وه. په ۱۹۴۵ کې د نړۍ پخوانی ویش هم نه تر سترګو کېده. د نړۍ د نظم لپاره بل سرمشق هم نه و. داسې ښکارېدله چې د کانت او دهغه دپلویانو ماډل په خپلو سیالو ډلو باندې برې موندلی دی. د پخواني سوشلستي کامنولت هېوادونو د رخې کولو پرځای د یو موټي کېدلو سیالي ورسره پیل کړه. حتی د چین ولسي۔ولسمشرۍ که څه هم هغه نظام یې ټینګ ساته، چې ګوند یې پرې ټپلی و، له هغه نه په دغسې ګټې اخیستلو پسې شو، چې خپل هېواد د امکان ترحد پورې عصري کړي، ددې لپاره چې په نوي عالمي مارکیټ کې اقتصادي سیالي وکړي. داسې ښکارېدله چې دغه عمومي خوښاوی دعراق د صدام حسین په چلینج سره نور هم ټینګ شوی و، یانې د هغه سیمه ییز جنګ مشر په چلینج سره چې په دې

لټه کې و، چې په زور او زړې لار سیمه ییز هژموني ټینګه کړي، چې بیا دامریکې په مخکښ د ملګرو ملتونو تر چتر لاندې د ټولیز مصوونیت په نامه د هغه پر ضد دغسې جنګ وشو، چې په ۱۹۵۰ کې تر هغه نه چې د شمالي کوریا د چلینج پر ضد شوی نور هم د اعتماد وړو. په پای کې آزادي په هغه مفهوم سره ښکاره شوه لکه د تنور ددورې خلکو ته چې ښکاره شوې وه: د سفر آزادي، د ایډیا وو د اطلاعاتو نوې آزادي او تر هرڅه ډېر مهم د سوداګرۍ آزادي. یوه خوښ لیدونکي امریکایي تحلیل ګر لا دغه نظر وړاندې کړ، چې د نړۍ لپاره نه یوازې یو نوی نظام رامینځ ته شوی، بلکې په خپله تاریخ د خپل پای پولې ته رسېدلی دی. خو دهغه اروپایي همکاران چې د تاریخ له ظرفیت څخه یې یو څه تجربه لرله چې یې د مځکې له سطحې نه خپل ځان جک کړی او ربړونو ته یې سوکان ورکړي وو، لږ متیقن وو.

د هغو شک زر په یقین بدل شو. په یوې لسیزې کې عمومي حال تریخ شو او نوې زرمه له ویري سره مخ شوه، نظر دېته چې له هیلې سره مخ شوې وي. ددې لپاره دوه اساسي دلیلونه وو.

لومړی دادی چې حتمي نه ده داطلاعاتو آزادي او تر ټولو زیات د سوداګرۍ آزادي به سوله راولي. د کارل مارکس دغه خبرداری چې د عالمي مارکیټ اقتصاد کړکیچونه پیدا کوي لاهم د اعتبار وړ پاتی دی، خو دعلاج لپاره یې دهغه نسخې دغسې نه دي. په عالمي پانګه والې ټولنې کې، لکه په داخل کې،تر ټولو ناتوان دېوال ته په شاکېږي. عالمي مسابقه زیاتره د محل د بربادۍ لامل کېږي. آن په نولسمې پېړۍ کې ټولو صنعتونو او د پېړیو پېړیو کرنیزو تولیداتو خپل حکومتونه تر فشار لاندې ونیول، چې دډېرو پرمختللو بین‌المللي

رقيبانو پروړاندې يې ساتنه وکړي. د بين‌المللي پانګه والي د قوت په وړاندې غبرګون په خاص ډول د ختيځې اروپا په هېوادونو کې ټينګ او د مسکو او ويانا تر مينځ هر چيرې په عام ډول محسوس و. دغه ټينګ غبرګون د پرولتاريا له خوا څخه نه و، چې مارکس يې توقع کوله، بلکې په ښارونو کې د وړو بورژواګانواو په اطرافي سيمو کې د وړو مځکه والو له خوا وو چې باندني – ضد، يهود ضد، نشنلزم او زورواکي، مرګکي مخلوط يې پياوړی کاوه، چې پايله يې لکه چې وليدل شوه، فاشيزم شو. د لومړي او دوهم نړيوال جنګونو ترمينځ هم فاشستي او هم کمونستي دولتونو له بين‌المللي مارکيټ نه د حفاظت لپاره حاکم اقتصادونه تاسيس کړل، چې په ۱۹۲۹ کې يې غټ بحران توليد کړی واو د دوی ظاهري بری په لويديځ کې په رخې سره ليدل کيده. خو په دوهم جهاني جنګ کې د محور قوتونو اقتصادونه له مينځ نه لاړل؛ خو دامريکې د متحدو دولتونو په پرېمانه مرستو سره بېرته په پښو ودرول شول. په هر حال په جرمني او ايتاليا کې د متشبثانو د پياوړو طبقو او په جاپان کې د پياوړي کارپوريټ کولتور په مرسته د مارکيټ اقتصادونو ته انتقال وشو. خو د۱۹۸۹ له ورانۍ نه وروسته هغه محافظتي موانع چې سوشلستي هېوادونه يې د وسپنې د پردې شاته ژوندي ساتلي وو او يوځه شتمن شوي هم وو، يوازې اقتصادي ګډوډې او ډېره خواري خلق کړه. ښه ليدونکو هغه د انتقال دوره وګڼله، په لوېديځ کې د پانګه والۍ د اولو وختونو په پرتله؛ خو هغه څه چې په پای کې په واقع کې په پخواني شوروي اتحاد کې هسک شو، لکه د مخه چې د افريقا په ډېرو برخوکې ليدل شوی و، هغومره دموکراسي نه ه، لکه چې کلپټو کراسي (kleptocracy) [د ټګانو يا غلو واکمني وه.] پانګه والي يا د مارکيټ حکومت يوازې هغه وخت اغيزناک وي، چې هغه په کومو ټولنو کې پلي کېږي، هلته دغسې مدني ټولنې له

پخوانه موجودې وي، چې په با کفایته بیوروکراسیګانو او ګډو اخلاقي ارزښتونو سره تړلي وي. دغه څیزونه په خپله مارکیټ تولیدولی نه شي. دموکراتیکي انتخاباتو هغه اجتماعي پیوستون چې د مخه موجود و، زیاتره وخت له مینځ نه وړی دی. په دغو شرایطو سره له کمونستۍ نه وروسته ټولنو کې هغه څه چې خلق شول هغه نظام او شتمني نه وه، چې لبرالانو یې توقع کوله، بلکې یو ډول باندني، ضد احساس، زورواکي او نیشنلزم و، چې یو نسل دمخه یې فاشزم خپور کړي و. بدلیدونکي شاید په دې فکر شي لکه چې ویلیم ګولډنګ په خپل ناول (Lord of the Flies) د مچانو لارډ یا مشر یې په دې فکرشوی و، چې دا یوازې هغه حالت دی چې د انسان واقعي حالت دی.

دوهمه دا چې د نړۍ په هغو ډېرو برخو کې چې لوېدیځ ارزښتونه او دعصري کېدلو ټوله اقتصادي پروسه چې ورپورې تړلي دي، له کولتوري اړخ نه محلي ارزښتونه او اجتماعي پیوستون ته بېګانه ګڼل کېږي. په دغسې سیمو کې اعتراضونه ډېرپیاوړي وي او هغه د هغو دیني مخکښانو له خوا تنظیم کېږي، چې ځانونه د عنعنوي نظام محافظان ګڼي، لکه په نولسمې پېړۍ اروپا چې کاتولیکي کلیسا همدغسې کول. په اسلام کې ځینې فرقې، په خاص ډول په ایران کې د هغې څرګندې بېلګي لیدل کېږي. په دغسې کولتورونو کې د نوي نظام د کولتوري مخکښ امریکا پرضد جذباتي مخالفت ښودل کېږي. دغه مخالفت له هغه مخالفت سره د پرتلې وړ دی، چې د نولسمې پېړۍ په جرمني کې دفرانسې د انقلابي کولتور پرضد ښودل کېده. د امریکې دستورو او لیکو بیرغ لکه ترهغه دمخه د فرانسې درې رنګه بیرغ د آزادۍ د سمبول په شان نه، بلکې د بېګانه ځپونکي په شان لیدل کېږي. خو له عصري کېدلونه خوابدي د

عیسوي بنسټ پالو فرقو له خوا هم ښوول کېږي، په خپله په امریکې کې هم ډېرلږ نه. دغه مخالفت په عین دولت کې دننه د اطرافي سیمو او ښارونو ترمینځ وخت هغومره چې داخلي وي، بین‌المللي هم وي. د درېیمې نړۍ په ډېرو دولتونو کې زورواک رجیمونه زیاتره په دې بریالي شوي دي چې د عصریکېدلو پر ضد چې د لوېدیځ کوونکو ښاري خواصو یا اتنیکي ډلو له خوا پلي کېږي، یا قدرت ترلاسه کړي یا یې خلک پر ضد وپاروي. په نورو ځایونو کې د افراطي ډلو ډېر سره تړل شوي بین‌المللي تنظیم دهغه ډول مذهبي تعصب له خوا هڅول کېږي چې په عصري شوي لوېدیځ کې ډېر دمخه له صحنې نه وتلي وي. دوی چې په نویو عصري وسلو سمبال دي، ځانونه دېته وقف کړي دي چې امریکایي ډول سیکولر نظامونه له پښو نه وغورزوي او پرځای یې د مذهب واکمني (Theocracy) راولي، چې په لوېدیځ کې له منځنیو پېړیو نه راپه دېخوا لیدل کېدلی نه شي.

دغه وضعه ددغسې پوښتنې له علامو سره نوره هم کړکیچنه شوې، چې اوس د لوېدیځ د وسټ فال (Westphal) جهاني نظم د اصل او جوهر په اړه هم راپورته شوي، چې هغه په خپله د واکمن دولت په اړه دي. دا وار په وار په زیاتېدونکې اندازه ددرې بېلو تخریبي عواملو له خوا تر تهدید لاندې شوې: له پاس نه، له اړخ نه او له لاندې نه.

د عالمي کېدلو په فشار سره له ملت نه پورته دغسې واحدونه ورو له قدرت سره هسک شوي، چې د واکمنو دولتونو په صلاحیت باندې حکم کوي. په پیل کې دغو واحدنو له اقتصادي موضوع ګانو سره سر او کار لاره، خو وروسته یې په ډېرېدونکې اندازه خپل صلاحیتونه پراخ کړل، ددې لپاره چې په

اجتماعي قوانیونو کې هم رول ولوبوي. په اروپايي اتحادیې کې دغه پروسه ښه ښرګنده ده، چې ددغې لیکنې په وخت کې کوښښ کوي په خپل یوه غړي (استریا) حکم وکړي چې د هغه د انتخابي حکومت ترکیب باید څنګه وي، خو له دېنه باید یو څوک غټو حکمونو ته لاس وانه چوي. امریکا په خاص ډول ددې اراده او ظرفیت لري چې په خپلې واکمنۍباندې نژدې ترنه ټاکل کېدونکي حد پورې د مداخلو مخنیوی وکړي. خو یو دولت چې څومره ناتوان وي احتمال لري په هماغه اندازه واکمني یې له چلنجو سره مخ شي. په دې نږدې وختونوکې د ملګرو ملتونو د منشور هغه حکم چې غړي یې باید د نورو غړو په دننیو چارواکې لـه لاسوهنې نـه ډډه وکړي، په خاص ډول د امریکې او د هغې دمتحدانو له خوا له نظرنه غورزول شوی او دوی د نورو واکمنو دولتونو په چارو کې د پیاوړې آزادي حق تر لاسه کړی، په دې نامه چې د بشري حقونو نه ناوړې ګټې د وچتولو مخنیوی کوي، حتی که دغه مخنیوی د ملګرو ملتونو په تایید وي، یا نه وي. خو دا په هیڅ ډول کومه نوې ادعا نه ده. دغه ادعا له هغو دلایلو سره ډېر ورته والی لري، چې په ټولې نولسمې پېړۍ کې اروپايي دولتونه یې په ټولیز ډول وهڅول چې هم د عثمانیې امپراتوري په دننیو چارو کې ګوتې ووهي او هم په فردي توګه د نړۍ په نورو ځایونو کې د مقدمې په توګه مداخله وکړي، ددې لپاره چې دغه په خپل سر سیمې د لوېدیځ مدنیت په حدود کې دننه کړي. ددایمي پور په حال کې په مالي چارو کې د مقایسې وړ مداخله وشوه، هغه څیز چې زمونږ په وخت کې دبین‌المللي پولي صندوق فعالیتونه یې مونږ ته په زړه کوي. دغه عالمي پېژندنه او د ضرورت په وخت کې ددغسې انساني نورمونو تنفیذ یو وخت په عام ډول د انساني پر مختګ نښه ګڼل کېدله، خو اوس حتی په لوېدیځ کې هم ځینې کسان هغه د کولتوري امپیریلزم نښې ګڼي.

په یقین سره ویل کېدلی شي چې په داسې حال کې چې لا ډېرپ یاوړي هېوادونه دخپلو ګاونډیو هېوادونو په چارو کې له دغسې حق نه کار اخلي،یوازې یو څو دولتونه به په واقع کې واکمن او خپلواک وګڼل شي.

د عالمي کېدلو اړخیزو فشارونه شاید ترنورو ډېر مهم وي. د ختیځ هند کمپنۍ له وخت نه په سهیلي افریقا کې د سیسل روډ تر وخت پورې ډېرو پیاوړو سوداګري ګټو دغه توان لاره چې د ناتوانه دولتونو حکومتونه یا په نظر کې ونه نیسي، یاپې ترکنترول لاندې راولي. د نن ورځې د څو ملیتي لویو شرکتونو ظرفیت د فعالیتونو په اړه شاید مبالغه شوې وي، خو حتی ډېر پیاوړي اقتصادونه هم د هغو له فشارونو څخه په امن کې نه دي. د یوه دولت دواکمنۍ هغه ډېر اساسي عنصر یانې اسعاري کنترول د پولي مارکیټونو د خصوصي کنترول له امله که پوره تخریب شوی نه وي، تر اثر لاندې یې کړی دی. پر هغه برسېره د اطلاعاتو عالمي زیاتوالی د خصوصي فشار ډلو د هغو غیر حکومتي موسسو لاسونه چې له محیطي، ایکالوجیکي او بشري چارو سره سر او کار لري ډېر پیاوړي کړي دي. کله کله تش په نامه واکمن حکومتونه د جنګله ډګرونونه زیات چې غیر دولتي عاملان پرې نښتې کوي، نور څه نه دي.

خو ددولتي واک د خوړل کېدلو تر ټولو مهمه سرچینه له لاندې نه دهغه ملاتړ لرېدل دي. باید وویل شي چې له ۱۹۴۵ نه وروسته هغه ډېر دولتونه چې رامینځ ته شوي دي، په یوه ډېر اساسي دلیل یې ددولتونو په شان انکشاف نه دی کړی. دوی د بالغ کېدلو هغه ډېره اساسي دوره نه ده تېره کړې، چې هغه خپلواکۍ لپاره د اعتبار وړ تیاری دی. د هغو استعماري بادارانو دوی وروسته له هغه چې یو څو سخت درسونه یې زده کړل له جنګ نه پرته په بیره په خپله

پرېښودل او دملت جوړونې یو څو وسیلې یې ورته برابرې کړې، پخوالـه دې چې د جوړېدنې لپاره یو ملت موجود وي. هغه وخت چې د خپلـواکۍ لپاره مبارزې وشوې هغه یوازې د هغو وړو ډلو له خوا وې چې هغو په لوېـدیځ کـې ډېـر ملاتـړ خواخوږي لرل، نظر دېته چې په خپلو خلکو کې یې ولري او دوی بیا له خپلواکۍ نه وروسته په دوام لرونکو کورنیو جنګونو کـې ونښـتل. ددغسـې دولتونـو خلـک حکومتونو ته کومه خاصه وفا نه لري، چـې هغـوی زیـاتره د عصـري کولـو لپـاره نامنلي پروګرامونه پرمخ بیايي؛ دوی پـه ژور ډول لوېـدیځ تـه پـوروړي دي؛ پـوره فاسد دي یا دغه ټول دي.

حتی په پوره صناعتي شویو او له صناعتي کېدلو نـه وروسـته دولتونـو کـې د لوی جنګ د احتمال په مړاوي کېدلو او په یقین سره دهغسې جنګ د ټولو خلکو کوښښونه غواړي، ددغسې اجتماعـي تجهیزاتـو ضرورت لـه مینـځ نـه وړی دی، چې په نولسمه پېړۍ کې په اوله کې یې دولتونه رامینـځ تـه کـړل او د عصـري کېدلو له ترخو تجربـو سره سره یـې خپـل پیوسـتون خونـدي وسـاته. هغـه ټینـګ عامه ژمنتوب یې چې د ملتونو ترمینځ جنګونه وو او ددغـو ملتونـو جوړېـدل یـې ممکن ګرزولي وو، د فردي ژمنتوب له مخې وو، چې که څه هـم فکـري وو، هغـه دیوه هېواد لپاره د ځان قربانول یا لږترلږه له هغو سره ځان شریکـول یـا لـه هغـو سره ملاتړي وه، چې کله به ددغې قربـانۍ لپـاره پـرې غـږ کېـده. جنـګ د ملـي اغیزمنتوب او مورال لپاره یوغـټ محـرک و، جنـګ د حـاکمو خواصـو دمخکښ توب امتحان کاوه او دټولـو طبقـو د بـالغ نارینـه د روزنـې لپـاره یـې ان د شلمې پېړۍ ترپایه پورې یوه پټه اجندا تهیه کولـه. د ملـت تـوب سمونونو، دودونـو او رسمونو اجتماعي پیوستون په هغې ساحې کې چې تر فشار لاندې و، ټینګ کـاوه؛

خو دشلمې پېړۍ تر پایه پورې دغه قربانۍ نور نو د اجتماعي قرار داد برخه نه ګڼل کېدله. جنګیا دجنګ تل حاضر امکان نور نو یو موټی کوونکی قدرت نه تهیه کاوه، چې ټولنه به یې یو موټی ساتله او د پرتلې وړ کوم بل څیز لا هسک شوی نه دی، چې د هغه ځای ونیسي. په کوم ځای کې چې د جلب د سیستم پرځای پاتې و، هغه د اجتماعي او سیاسي دلیلونو له مخې و. هغه په نظامي لحاظ له ګټې نه زیات تاوان اړوي. جنګ اوس د تنور دورې په شان پوره روزل شویو ماهرانو کاوه، دغسې ماهران چې جذب او ساتل یې وار په وار ګران وي.

په دغسې شرایطو کې هغه ډول وطنپالنه چې د اروپا خلق یې قادر کړل دوه لوی جنګونه وزغمي اوس هغسې زړه ښکاري لکه د فیوډالي وفا پالنې په شان چې یې ځای نیولی و. ملي بیرغ نور دغسې سمبول نه دی، چې ویره او درناوی تحریک کړي، چې ډېر شي هغه اوس د یوې کمپنې د پېژندنې د نښې په شان دی، چې وظیفه یې په سهم لرونکو د ګټې ویشل دي. هغو ته، لکه تر هغو دمخه برک (Burke) ته چې د سهم لرونکې کمپنۍ په شان د ملت په بې قدرۍ افسوس کوي، ګرانه ښکاري چې د خپلو شکایتونو لپاره وظیفوي موجهه دلایل ومومي. دولت اوس باید دلویو واحدونو پروړاندې چې غواړي هضم یې کړي او د وړو واحدونو پروړاندې چې غواړي تجزیه یې کړي، خپل پاتې کېدل په حقه ثابت کړي، په پوره عملي دلیل سره چې خپلو سهم لرونکو (یعنې خپلو خلکو) ته تر هغو دواړو څخه ډېر ښه شرایط برابر کړي. حتی هغه وسلې چې طرح کېږي او جوړېږي له دغه نظر څخه دي، چې هغومره د ملي دفاع لپاره وي، د ګټورو صادراتو لپاره هم وي. اوس په واقع کې اروپایي دولتونه په خپلو وسله والو ځواکونو باندې تر هغه نه چې ضرور دي، ډېر لګښت نه کوي، چې امریکا

وهڅوي چې دوی د ګټورو متحدانو په شان دوظیفې د تر سره کولو ظرفیت لري.

البته دغه حکمونه د امریکې په متحدو دولتونو باندې صدق نه کوي؛ لا ډېر لږ په روسي او د چین په ولسمشرۍ باندې. د چینایانو لپاره وسله وال ځواکونه دملت جوړونې په پروسه کې یو اصلي عنصر دی، په داسې حال کې چې د روسانو لپاره هغه ممکن و ملي احیا لپاره یو متحرک قوت وي؛ خو د امریکې متحد دولتونه یوه پیچلې موضوع ده. په نورې نړۍ باندې د امریکې نظامي لوړوالی اوس هم هغومره ډېر دی لکه چې یوه پېړۍ دمخه د ټولو اروپایي دولتونو و. امریکا د نړۍ د نوي نظم لپاره دنه چلنج وړ بیخ تهیه کوي. د امریکې خواص خپل ټول واکمني مسولیتونو ته ښه ویښ پاتي دي، چې هغه د هغو داخلاقي ژمن توب او مادي ګټو د ترکیب پر بنسټ ولاړ دي، کوم چې د مخه اروپایان ورته ژمن وو.د امریکې خلک نن جنګ ته هغه درناوی ښیي کوم چې د اروپا خکلو سل کاله دمخه ښوده. امریکایانو ته بیرغ د سوداګرې کمپنۍ له علامې نه بیخي ډېر دی او د هغو حال به ښه نه وي چې دغسې یې ګڼي. د جیکسن مخالفت لا هم د امریکې د عامه کولتور یوه برخه ده؛ خوله دې سره هغه کراهت ملګری دی چې دلویدیځ په ښاري شویو ټولنو کې په ګډه لیدل کېږي، چې ژور تاوانونه نظامي یا ملکي وي ورواوړي. هر خدمت کوونکي ته چې په جنګ کې ووژل شي، د ملي شهید په شان کتل کېږي او کورته راوړل کېږي اوپه پوره نظامي ویاړ خښ کېږي. هر هوایي افسر چې په جنګ کې راوغورزول شي، د امریکې په ډېرو لکښتونو سره د ژغورنې هیله کولی شي. دغه په ظاهر کې متناقض حال (Paradox) چې له قهرمانۍ نه وروسته دوره نومول شوې ده

په سمارټ ټکنالوجۍ سره تر یوه حده پورې حل شوې ده، چې وایي ددښمن دهدفونو سم ورانی له اوږدې فاصلې نه ممکن شوی. هغوی چې لا تیار نه دي خپل ځواکونه په خطرناک حال کې واچوي، د هغو پروړاندې به په نسبي ډول په خراب حال کې جنګ وکړي، چې یې غواړي. د تومهاک توغندي ممکن د هوا حاکمیت ولري، خو دا د کلاشنکوف ماشین ګټې دي، چې تر اوسه هم په مځکه حاکمیت کوي، دا دغسې یونااندوول حالت دی، چې د نړۍ د نظم نافذ کېدل یې لانجمن کړي دي.

په ظاهر کې د ملي دولت دغه مړاوي کېدل، حتی که په خپله ددولت مړاوي کېدل هم نه وي، ممکن داسې ښکاره شي، چې د کانت پلویان یې باید هرکله وکړي. په رښتیا دا یوازې د ملي دولت ایډیالوجي وه، چې د شلمې پېړۍ دوه هیبتناک جنګونه یې ممکن کړل. هغه شکایتونه چې هم د ملتونو د لیګ او هم دملتونو پرضد کېږي، دادي چې هغه د دولتونو تر مینځ وو، نه دولسونو تر مینځ او دا چې که ولسونه د حکومتونو تر شا غونډکېدلی وشي، دوی به په پای کې تلپاتې سوله خوندي کړي. دا هغه څه دي چې اوس په رښتیا له ملت نه پورته اطلاعاتو او دنړۍ د فشار په ډلو سره پېښېږي، چې د مخه یې ذکر وشو. ایا دا اوس په ټوله مانا یو نا مطلوب تمایل نه دی؟

ځواب یې البته هو دی، چې زر به ولیدل شي. خو اصلي مشکل دادی چې دولت نه یوازې جنګ ممکن کوي؛ هغه سوله هم شونې کوي. سوله هغه نظم دی چې که څه هم نیمګړی به وي، ددولتونو د موافقې نتیجه به وي او یوازې په همدغې موافقې سره دوام کولی شي. واضحه نه ده چې د سوله ییز نظم کوم بدیل جوړونکی یا ضمانت کوونکی به په دغې عالمي شوې نړۍ کې ددولت

ځای ونیولی شي. دولت سره له دې هم هغه یوازنی اغیزناک میکانزم پاتې دی، چې دهغه له لارې خلک ځانونه اداره کوي او هغه د خپل مشروعیت په حدود کې دغه ټکي ته ځان رسوي، چې خلک یې نور نو دخپلې ټولنې لپاره د خپل استازي په شان نه مني. څه وخت چې خبره دغه ټکي ته ورسېږي هغوی نوی دولت په پښو دروي. په دې ډول ددولت ناتوان کېدل به په غالب احتمال د نړۍ نظم پیاوړی نه کړي، بلکې ناتوان به یې کړي، ځکه چې په دغه حال کې دولتونه ددې توان لرلی نه شي، چې خپل هغه بین‌المللي ژمنې ترسره کړي چې بین‌المللي نظم پرې ولاړ دی. له ملت نه پورته دصلاحیت مقامونه هغه وخت اغیزناک کېدلی شي چې که هغوی وفا پالنه په میراث وګڼي، کوم چې په حاضر وخت کې یې دولتونه له خپلو خلکونه تقاضا کوي او دکولتور او ارزښتونو هغه تجانس غواړي چې وده به یې نسلونه ونیسي. حتی هغه وخت هم دسیمه ییزو ګټو په سرجنګونه دغه ټول جوړښت له مینځ نه وړلی شي، لکه چې د امریکې په کورني جنګ کې نزدې وو، چې همدغسې وشي.

نو کانت په حق و، چې ویل یې د جمهوریتونو شتون د سولې د خوندي کولو لپاره اساسي بنسټ دی، ځکه چې دغسې دولتونه د خپلو افرادو اطاعت ترحکم لاندې راولي، نظر دېته چې هغوی دغه اطاعت په ضروري ډول له جنګ سره د مخالفت له امله کوي. خو په واقع کې همدغه اطاعت حتی د کانت په خپل وخت کې ممکنه کړه چې هغسې جنګونه وشي چې د پاچایۍ د وختونو تر محدودو جنګونو نه ډېر هیبتناک وو. بیا هم هغه یوازنی بنسټ و، چې په هغه باندې سوله خوندي کېدلی شوه.

خو دا په خپل ذات کې کافي نه وه. لکه چې مونږ ولیدل چې سوله انسانانو ته یو طبیعي نظم نه دی. هغه مصنوعي، نازک او ډېر تحول منونکی دی. ټول ډول مخکیني شرطونه، نه یوازې کولتوري تجانس (چې دګډې ژبې له لارې ډېر ښه افاده کېږي) ضروري دي چې هغه سیاسي پیوستون ممکن کړي چې په آزاد ډول د قانوني چوکاټ بنسټ او لږترلږه د پوهنې ښکته سطح، چې له لارې یې د کولتور انتقال کېدلی شي، ومنل شي. پر دې برسېره څنګه چې دولتونه انکشاف کوي، هغه ډېرو لایقو خواصوته اړه لري، دغسې کسان چې وکولي شي د هغو پیچلي، حقوقي، تجارتیا و اداري سیستمونه وچلوي او هم په ټولنې باندې د ملاحظې وړ اخلاقي صلاحیت ولرلي شي. چیرته چې دغه شرطونه نه وي، یا چیرته چې هغه د فساد په حال کې وي، هلته به د ګټو ګډون نه وي، چې داخلي یا بین‌المللي سولیز نظم رامینځ ته شي، یا خوندي وساتل شي. په دغه حال کې بیا د وسله وال جنګ احتمال ډېرېږي.

په دې ډول د عالمي سولییز نظم تأسیس د دغسې نړۍ والې نړۍ په جوړېدلو پورې تړلی دی، چې دغه خصوصیتونه ولري چې داخلي نظم ممکن کولی وشي او هغه د هغو ټولنو له خوا چې دمخه یې لرلي، تر ممکن حده پورې پراخه توسعه ده.د نړۍ نظم یوازې په بین‌المللي موسسو او تشکیلاتو سره نه جوړېږي، بلکې د هغو غړو په کولتوري میلان او تاریخي تجربو سره په طبیعي ډول هسکېږي. د هغو جوړول او عملي کول لږترلږه د ملت نه پورته خاصانو شتون غواړي، چې نه یوازې هماغه کولتوري معیارونه سره په ګډه لري بلکې معیارونه دننه په خپلو ټولنو کې د منلو وړ ګرزوي او چیرته چې ممکن وي خپل

همکاران موافقې ته وهڅویاو د ضرورت په وخت کې هغه د منل کېدلو لپاره تعدیل کړي.

ددغسې ملت نه پورته خاصانو رول په منځنیو پېړیو په اروپا کې د کلیسا له خوا ادا شوی و. روحانیان یې په یوه ژبه ګړېدل، یو ګډ کولتور یې سره په شریکه لاره او په دغسې بین‌المللي نظام پورې یې تعلق لاره چې نورمونه یا معیارونه یې محلي سطحې ته په اغیزناک ډول نقل کېدل او هلته د محلي کولتوري تمرین په نظر کې نیولو سره تعدیل کېدل. د هغو دغه لوړوالی د مذهبي اصطلاحاتو (Reformation) په وخت کې ختم شو، خو ورسره نوي خاصان هسک شول. دغه خاصان په زیاته اندازه اشرافو کورنیو له ودونو څخه را ولاړ شول، چې د راهسکېدونکو دولتونو چارې یې تر سره کولې او په دغه کار کې باسوادو، له پوهنتون نه فارغ حقوق پوهانو او پوهانو ورسره په ډېرېدونکې اندازه مرسته کوله. دوی ټول بیا د تنور دورې لپاره بنسټ ایښودونکي شول. د واکمن پاچا د خدمتګارو په شان هغو ته د اطاعت له امله زیان ونه رسېد، لکه د هغو پرخلاف چې دمخه بکټ (Bucket) یا وولزي (Wolsey) یې برباد کړي وو؛ خو دوی هغه چوکاټ وایست چې ددولتونو په بین‌المللي سیستم چلېدل او د سولې خوندي کول یې ممکن کړل، که څه هم دغه کار وار په وار کېده. شاید لا هم د بانک والو او سوداګرو له ملت نه پورته ټولنه وه چې له سرحدونو نه اخوا یې خپل کارونه په کراره پر مخ بېول، چې هغوی زیاتره د جنګ او سولې موجودیت ته بې تفاوت وو.

دغه خلک تراتلسمې پېړۍ پورې په خپلو زیاتره نالوستو ټولنو کې یو کوچني لږه‌کیوو؛ خو ښه درناوی یې کېده او په درنه سترګه ورته کتل کېدل. په

نولسمې پېړۍ کې چې دصناعتي کېدلو په نتيجه کې د خير او ښېګڼې طرز کې اصلاحات راوستل شول او اروپا ښاري او عصري شوه، د هغو شمېر او اهميت نورهم ډېر شو. په بين‌المللي ډګر کې له ډيپلوماټانو او بانک والو سره حقوقپوهان، د پارلمانونو غړي، متشبثان او د اختصاصي کسبونو هر ډول اشخاص يو ځای شول. د باندنيو ژبو زده کړه، چې په معمول ډول فرانسوي او په ډېرېدونکي ډول انګريزي وه، يو ضروري مهارت شو. د پوهانو ټولنه، د ساينس پوهانو او ټکنالوجستانو په ګډون سره پراخه شوه. بين‌المللي موسسې او کنفرانسونه هم ډېر شول. د اروپا صناعتي کېدل، که څه هم سملاسي اثرېې د نيشنلرم هسک کېدل شول، په عين حال کې يې غړيتر ډېره حده يو پر بل متکي کېدل. اختصاصي طبقو له ملت نه اخوا له روښوالي او همکارۍ نه پرته نه شو کولای هغسې ماهران تهيه کړي چې ملي اقتصادونه وتوانوي خپلې دندې ترسره کړي.

ددغه مخ په ډېرېدو روښتوب اويو پر بل د متکي توب په کتلو سره وو، چې د رچرډ کابډون (Richard Cobden) په شان لبرلانو يو وخت د سوليز بين‌المللي نظم جوړېدلو ته سترګې ونيولې؛ خو دغه کار وخت ونيوه.ددغو ماهرانو او سوداګرو له ليکو څخه وو، چې د سولې غورځنګ تر ډېره حده راوټوکېده، چې نفوذ يې په خاصه توګه په پروټسټاني انګلوساکسون[۲](Anglo-Saxon) ملتونو کې پياوړی و؛ خو بل چيرې، په تېره د نوي جوړيشوي جرمنيپه امپراتورۍ کې، دغه بورژا مخکښان په پخوانيو، لا هم نظامي طبقو کې ننوتل،تر يوې اندازې د سوشلزم له ويرې او تر ډېرې اندازې اجتماعي پرستيج په دليولونو (چې بايد ورته په ښکته نظر ونه کتل شي). يوازې په جرمني کې نه وو، چې دوی نويو

پوځونو ته افسران تهیه کړل؛ خو د شلمې پېړۍ په پیل سره د هغو تر منځ عمل او یو پر بل متکي کېدل زیات شول او له دې سره د ملت له خوا د دوی ګډې ګټې هم. په همدغه مهال دوی د خپلو هېوادونو شتمن کېدلو او انکشاف ته په ډېرېدونکې اندازه حیاتي اهمیت پیدا کړ. د یهودانو په تصفیې سره د اختصاصي کسبونو ځپل کېدل په دوهم نړۍ وال جنګ کې جرمني په اساسي ډول ناتوان کړ، په داسې حال کې چې په شوروي اتحاد کې د۱۹۲۰ په لسیزې کې او د ۱۹۷۰ په لسیزې کې په چین کې د ټولې بورژوازي طبقي له مینځ نه وړل د عصري کېدلو په مسابقه کې دوی ګوډ کړل. د شلمې پېړۍ په پای کې د امریکې دولتونه چې د مځکې په سر تر ټولو پیاوړی ملت و، دغه لوړوالی نه یوازې د هغه جسامت او منابعو له امله و، د هغه ددغه اماده توب له امله هم وو چې له ټولې نړۍ نه ساینس پوهان، ټکنالوجستان، انجینران او متشبثان ومني، جایزه ورکړي او امریکایي یې کړي.

په دې ډول د نویې زرمې په پیل کې دغسې اصلي عالمي ملت نه اخوا ټولنه له ګډو ارزښتونو او یوې ګډې ژبې سره رامینځ ته شوه، چې اوس انګریزي وه. دغسې ملت نه پورته ټولنې په لوېدیځې نړۍ کې د صناعتي کېدلو نه وروسته ټولنو کې په خپلو خلکو کې د پخوانیو ټولنو په تناسب بیخي ډېر خاصان لرل. په پای کې ایا دغه حال دغسې یو پیاوړی بنسټ نه تهیه کاوه، چې پر هغه باندې د لوی نړیوال نظم د سولې ودانۍ ودرولی شي؟ هو، تر یوه حده پورې؛ خودوه اساسي کشالې لا هم پاتې دي. لومړی دا چې پخواني له ملت نه پورته خواص، لکه هسې چې دمخه یې بیان شوې په خپلو ټولنو کې یو کوچني لږه‌کیوو، خو دوی له دوه اساسي ښېګڼو څخه بهره من وو.

لومړی هغه درناوی و، چې دوی په خپلو نالوستو ټولنو کې د روحانیانو او اشرافو په شان ترېنه بهره من وو. د هغوی په اجتماعي لوړتیا کې هیڅ شک نه و. دوهم یې لړترلړه له تنور دورې نه وړومبی د موجودې وضعې په خوندي ساتلو کې ددوی رول و. دوی تخریبونکي نه وو. دوی تر اتلسمې پېړۍ پورې د نظم او عنعنوي ځواکونو ملاتړ وکړ او هغو هم له دوی سره همدغسې وکړل؛ خو د نولسمې پېړۍ اروپا (او وروسته د پاتې نړۍ) بورژواګان له دغسې ښېګڼې نه بهره من نه وو. دوی میراثي حیثیت نه لاره (له دې امله د دوی اندېښنه چې په هغو کې چې دغه حیثیت لري، ننوځي،) د دوی فکرونه او فعالیتونه د عنعنوي نظم تخریبونکي وو، دغو غبرګون وپاروه، چې په هغه سره عنعنوي نظم ساتونکو هغوی مجهز کولی شول چې د عصري کولو او سیکولر کولو په پروسې سره چې دغو خواصو پرې پیل کړی و، د هغو ژوند طرز تخریبوه،که یې پوره له مینځه نه ووړ. راتلونکی جنګ به په نسبي ډول په سولې سره پای ته ورسول شي، لکه چې په انګلستان کې همدغسې وشول. په فرانسې کې هغه د نسلونو په بهیر کې په دوه اړخیزې کرکې سره وسوزول شو. په نورو سیمو لکه په هسپانیې کې هغه د داخلي خونړي جنګ لامل شواو په جرمني کې په جنوساید د نسل په له مینځ نه وړلو واوښت. د شلمې پېړۍ تر پایه پورې دغې پروسې په اروپا کې خپله دوره ختمه کړه. د عصري کېدلو مخالفان مغلوب شول او ګټونکو له سرحدونونه دباندې د نوي بین‌المللي نظم د جوړولو لپاره د ګډ کار کولو لاسونه سره ورکړل. په عمومي او درد ناک ډول دغه درس زده کړل شو، چې هغه ټولنې چې کوښښ کوي د متشبثانو دغسې استعداد وځپي چې لرې یې نظر خپلو رقیبانو ته زر د تاریخ کندې ته لوېږي.

خو په نورو ځایونو کې دغه مبارزه لا هم روانه ده. دغه بورژوا خواص (Bourgeois Elites) له لویدیځ نه دباندې ټولنو کې اقلیتونه دي، چې د خپلو ټولنو استازي توب کولی نه شي او دوی د ژوند دغسې لوړ سطح لري، چې پراخې پرګنۍ ورته رسېدلی نه شي، چې دوی ورسره اوسېږي. هسې چې د نولسمې پېړۍ اروپا کې و، داسې هم د دوی فعالیتونه د ښېګڼې نه بلکې د زېبناک ګڼل کېږي. داسې هم د دوی ارزښتونه عنعنوي کولتورونو ته مخرب ګڼل شوي دي، لکه چې وضع په رښتیا همدغسې ده. دوی د بېګانه قدرت، په خاص ډول د یوه قدرت، امریکې ایجنتان ګڼل کېږي، چې ډېر یې د هغې او داسې هم د اروپا په پوهنتون کې لوړه زده کړه کړې ده. دغسې په جنګ کې ایسار شویو اقلیتونو ته دموکراسي یو لوکس څیز دی. دوی که ژوندي پاتې شي، د زورواکو رجیمونو ملاتړ ته به ضرورت ولري. دغه حال لوېدیځ لبرلانو ته کشالې پیدا کوي، چې په عین حال کې ددرېیمې نړۍ عصري کېدل ددموکراسۍ او بشري حقونو ساتنې ملاتړ کوي. درېیم ناپلیون، چې شاید لومړنی یا شعوري عصري کوونکی دکتاتور وي، هغه په دغې وعدې سره مخالفان ځپل چې ((آزادي به یو څوک پاچا کړي.)) له دغه استدلال نه نن ورځ ددغسې زورواکو رجیمونو لکه د چین او سنګاپور پلویان کار اخلي. له هغه نه زیاتره وخت نورو لکه ترکیې، هسپانیې، پرتګال او په واقع کې چلي استفاده کړې ده. ددغسې زورواکو لپاره بدیل به دموکراتې موسسې نه، بلکې د انارشي ځنګل وي، چې جنګ مشران یا مرتجع عامه دموکراتیکي دکتاتورۍ وي، لکه د طالبانو، عصري کېدل به په پای کې د تنور دورې د فکرونو خپرېدلوته منتهي شي، خو که هغه دوام کوي هغه د اجتماعي اوسیاسي نظم چوکاټ ته اړتیا لري. په عین حال کې د هغه پرمختګ له نښتو او جګړو سره ملګری وي لکه چې

په لوېديځ کې په همدغه ډول فيصله شوه، خو هغه په نړۍ کې هر چيرې په همدغه ډول دوام کوي. جنګونه که څه هم ځايي ريښې لري، غبرګونونه يې بين‌المللي وي.

په پای کې لوېديځ د خپلو نښتو پيداکولوته دوام ورکوي. لوېديځې ټولنې به اوس ټولې سوله ييزې بورژوازي وي، خو د بورژوا ټولنه زړه تنګونکې (Boring) او پيکه وي د هغې د ښې افادې لپاره په يقين سره تر دې ښې طريقې شته، لکه يوه يې چې زيګمونډ فرويد وړاندې کړې ده، خو دا دغسې يوه پېښه ده چې تاريخپوهانو زياتره وخت له نظر نه غورزولې ده. لکه هسې لا مارتين (Lamartin) په پاريس کې په کال ۱۸۴۸-۴۹ کې ويلي وو چې دا زړه تنګونکې وه چې د لويي فليپ (Louis Philippe) درنده پاچايي يې له مينځ نه يووړه. د انسانانو غټ اکثريت هيڅ کله دغسې هوسا ژوند نه دی لرلی، چې د زړه تنګۍ تجربه ولري؛ دوی مجبور وو، د منګ او جنس له توپير نه پرته له سهار نه تر ماښام له زانګو نه تر ګوره پورې کار وکړي. د منځنيو پېړيو کليسا د هغې په اړه پوهېدله؛ دوی اسډييا اساډي (Accede) له اوو څخه يوه مرګونې ګناه وبلله. زړه تنګي د تنور دورې له مېخانيکي عقلانيت سره رومانتيکي غورځنګ (Rommantic Movements) او ډېر نورڅه توليد کړل. زړه تنګي تل په هنرونو کې تل د مخکښانو د هسکېدلو لامل شوې ده. د عقلاني نظم په اړه داسې څيز شته چې ځينې خلک به تل، په تېره ديناميک ځوانان په ژور ډول او ممکن په رښتيا ناراضي کړي. (هرچا چې د لوېديځ په پوهنتون کې د ۱۹۶۰ لسيزې په اخر کې تدريس کړی وي، هغه حقارت به په زړه کړي چې د هغو افراطي محصلانو د بورژوا کلمه په سپکه له خولې بيرون کوله.) سياسي داعيه به ضروري وي، چې

دغسې نارضایت ته ژوره پاملرنه وکړي، خو ضروري نه ده چې هغه به یې خلق کړي. د بورژوازي د ارزښتونو نه منل به دغسې شکلونه غوره کړي، لکه یو مړ پسه چې دوه ځایه کړل شي، یا ځان ورانی وي او مرګکي دواګانې وخوړلی شي. خو هغه داسې هم تخریبي تشدد ننداره ییزي استفادې، یا د نهیلستي ډلو جوړولو ته منتهي کېدلی شي. په باثباته ټولنو کې به دغه چلند په مکرر ډول خو اداره کېدونکې خوابدي وي. خو هغه وخت چې د اجتماعي ثبات بنسټ تهدید شي، هغه به بیا ډېر جدي شي او هیڅ ټولنه به باثباته نه وي، چې دایمي وزګارتیا پکې خورا ډېره وي، یا په نژادي نښتو سره ټوټه کېږي. نیشنلستي مبارز غورځنګونه یا د توطیه ګرو افراطي حرکتونه د زړه تنګۍ لپاره ډېرې ښې مجراوې تهیه کوي، چې سره ترکیب شي، د هغو له انجذاب نه دفاع کېدلی نه شي.

نو که څه هم هڅونکې ده، چې یقین وشي چې څنګه بین‌المللي بورژوا ټولنه خپل نفوذ خپروي، یو لوی او با ثباته نړیوال نظم به ورو ورو رامینځ ته شي، مونږ به هوښیار نه اوسو چې هیله وکړو دغسې یو څه به پېښ شي. دا هغه څه و، چې نورمان انجل (Norman Angell) او نور په ۱۹۱۴ کې پرې معتقد وو. جنګ د کشالو هوارولو لپاره یوه وسیله وه چې د عقل خاوندان به بیا هیڅکله ورته لاس وانه چوي، خو افسوس چې دوی همدغسې وکړل. نو راځئ چې مونږ لږ ترلږه هیله وکړو چې کانت پرحق و او دا چې هر هغه بل څه چې ممکن پېښ شي ((د تنور تخم)) به تل ژوندی وي.

(پای)

# یادښتونه

## جنګ او زموږ نړۍ

۱. لومړی نړۍ وال جنګ: له ۱۹۱۴ نه تر ۱۹۱۸ پورې د متحدو ځواکونو برتانیې، فرانسیې، روسیې، جاپان او سربیا او د مرکزي ځواکونو جرمني، استریا –هنګري، عثماني امپراتورۍ او بلغاریې تر مینځ و. دوه مهم علتونه یې د جرمني استعماري تجویزونه او اروپایي کړکیچونه وو، چې له دیپلوماتیکي اتحادیو، نیشنلستي پارونو – په خاص ډول په بالقانا تو کې ولاړ شوي وو. په لوېدیځې جبهې کې دواړه خواوې په دې فکر وې چې د شمېر لوړتوب به په پای کې غوځه نتیجه ورکړي، د مېخانیکي دفاع له ډېروالي سره سره. ددغو ټولو نتیجه دخندقونو څلورکاله جنګ او د مرکزي ځواکونو ماتې شوه. جرمن تسلیم شو؛ د استریا-هنګري او عثماني امپراتوري تجزیه شوې. په روسیه کې هم د تزاري پاچایي له مینځ نه لاړه په دې ډول چې اول په فبرورۍ کې انقلاب وشو او بیا په اکتوبر کې بولشویکانو کودتا وکړه. په پای کې په نومبر کې د پاریس په کنفرانس کې متارکه وشوه او د سولې شرطونه تحمیل شول او په جرمني باندې د جنګ دغومره ډېر درانده جنګي تاوانونه کېښودل شول چې هغه په پای کې د هټلر او نازیزم د هسکېدلو عامل شو. په جنګ کې لږترلږه لس ملیونه انسانان ووژل شول او شل ملیونه نور ټپي شول.

۲. دوهم نړۍ وال جنګ: د محور ځواکونو او متحدو ځواکونو تر مینځ په ۱۹۳۹ کې پیل او په ۱۹۴۵ کې د جاپان هیروشیما او ناګاساکي په ښارونو باندې د اټومي بمونو په استعمال سره ختم شو. د محور ځواکونه په اول کې د

هټلر په سروالي جرمني او د موسوليني په سروالۍ ايتاليا وه. متحد دولتونه برتانيه، فرانسه، د امريکې متحد دولتونه، برازيل، مکسيکو او شوروي اتحاد وو. ورو ورو په دواړو خواو کې د نړۍ نژدې ټول حکومتونه د جاپان په ګډون شامل شول. هټلر چې په جرمني کې په ۱۹۳۳ کې په واک شوی و، په پټه جرمني وسله وال او په ۱۹۳۹ کې يې له شوروي اتحاد سره دنه تېري تړون لاسليک کړ او بيايې د پولينډ دالان په نامه سيمه ونيوله. پولينډ د شوروي اتحاد او جرمني تر مينځ وويشل شو په دغې پېښې سره فرانسې او برتانيې چې تر دغه وخته يې له جرمني سره نرم چلند کاوه، له هغه وروسته يې ورسره د جنګ اعلان وکړ. شوروي اتحاد فنليند او د بالتيک هېوادونه لاندې کړل. بل کال جرمني د ناروې، دنمارک، بلجيم او هالېند هېوادونه لاندې کړل او د فرانسې څلورمه برخه يې خپله کړه او په برتانيې باندې يې هوايي بمباري پيل کړه. په يو شمېر هېوادونو کې نازي پلوه حکومتونه په پښو ودرول شول. ايتاليې، البانيه، يوګوسلاويه او يونان يو په بل پسې ونيول. هټلر د ۱۹۴۱ کال په جون کې له شوروي اتحاد سره خپل تړون مات کړ او پرې ويې دانګل او ځواکونه يې د مسکو او لينن ګراد ښارونو ته نژدې شول. جاپان هم بې له دې چې د جنګ اعلان يې کړی وي، د ۱۹۴۱ کال په دسمبر کې د امريکې د هوايي ايالت پرل هاربر بمباري کړ. امريکا بيا د متحدو ځواکونو په پلوي هم په جنګ کې ګډون وکړ. برما، ملايا، فلپاين او د هالېند غرب الهند ټاپو ګانې د جاپان له خوا ونيولېشوې. په ۱۹۴۲ کې د متحدو ځواکونو لومړی متقابل يرغل وشو. امريکې په ارام سمندر کې لوړتيا تر لاسه کړه او په شمالي افريقا کې د جنرال رومل په قومندانۍ د جرمني يوه قوه مغلوبه شوه. د جرمني کوښښونه په ختيځي اروپا، استالين ګراداو ګورسک کې سرته ونه رسېدل. د ۱۹۴۴ په جون کې متحدو ځواکونو په اروپا کې حملې وکړې او

جرمني تسليم شو. دا وروسته له هغه وو، چې هټلر په برلين کې ځان وژلی و. په ارام سمندر کې جنګ لاهم کېده چې په پای کې د هيروشيما او ناګاسا ښارونو باندې د امريکې اټومي حملو هغه پای ته ورسوه.

په دغه جنګ کې اټکل پنځلس مليون نظاميان ووژل شول چې په هغو کې د شوروي اتحاد دوه مليون پناه غوښتونکي هم شامل دي. د ملکي کسانو تلفات اټکل پنځه دېرش مليونه دی. په هغو کې د څلور او پنځه مليونه تر مينځ يهودان هم راځي. دوی په خاصو کمپونو کې ټول کړل شوي وو. د شوروي اتحاد، ختيځ جرمني او ختيځې اروپا پناه غوښتونکي هم مليونونو ته رسېږي. ددغه جنګيوه نتيجه تر ۱۹۸۹ پورې د جرمني ويش او په ټولو هغو هېوادنو باندې د شوروي اتحاد غلبه وه، چې روسيې په لومړي نړۍ وال جنګ کې له لاسه ورکړي وو، په همدغو هېوادونو کې د شوروي اتحاد تر حکم لاندې کمونستي رجيمونه هم په واک ورسول شول. په لېرې ختيځ کې د ملي غورځنګونو مقاومت د ختيځ – سهيل هېوادونو خپلواکي هم يقيني کړه. داسې هم دغه جنګ د هندوستان، پاکستان او د برما د خپلواکۍ غورځنګ پیاوړی او بريالی کړ لکه په افريقا کې چې يې د خپلواکۍ حرکت وهڅوه. شوروي اتحاد او د امريکې متحد دولتونه ددغه جنګ په نتيجه کې د نړۍ دوه عالمي – زبرځواکونه شول، خو د درې کلونو په بهير کې د دوی د جنګ د وخت ملګرتوب له مينځ نه لاړ او هر يوه د وسله وال کېدلو په پروګرام باندې لنګر واچوهاو په نړۍ کې د ساړه جنګ په نامه يو بل ډول جنګ پيل شو.

۳. تو<u>ره تبه يا تورمرګ</u>: دهغو وبا نوم دی، چې د ۱۳۵۰-۱۳۴۸ کلونو په بهير کې په اروپا کې پيدا شوې وه. دغه وبا په اصل کې له ورګې نه تورو مږکانو او له هغو نه انسانانو ته وړل شوې وه. مشخص مکروب يې (Bacillus Pestis)

په نامه یادېده چې د ایتالیې له بندرونو څخه راولاړ شوي او له هغو ځایونو نه یې د سوداګرۍ کښتوته سرایت وکړ، چې په تور سمندرګي کې یې د سوداګرۍ مالونه وړل. ددغې وبا له امله په اوله دوره کې د اروپا د خلکو لږترلږه ځلورمه برخه له مینځ څخه لاړه. انګلستان ته د ۱۳۴۸ کال په ژمي کې ورسېدله چې په وروستیو کلونو کې یې لږترلږه دریمه برخه انګریزان له منیځ نه یووړل.

٤. پـه انګلستان کې د پاچا ښځې وکتوریا: ۱۹۳۷ – ۱۹۰۱ دوره ډېره یادېږي. د هغې په واکمنۍ کې په صناعتي ډګر کې ډېر پرمختګ وشو او سیاسي او اجتماعي تحولونه هم ډېر پکې پېښ شول. ادبي او سیاسي طرز هم پرمخ ولاړ. خو د پرځان اعتماد وکتوریایي ارزښتونه په عین حال کې له زبیښاک، دوه مخي توب او امپریلستي غرور سره هم ملګری و.

٥. سوم Somme: په لومړي نړۍ وال جنګ کې د سوم جبهه چې د ۱۹۱٦ کال د جولایي له اول نه د نومبر تر ۱۸ مې نه پکې جنګ کېده، ډېر خونړی و. دغه جبهه له دې امله پرانیستل شوه چې په وردن (Verdun) باندې فشار لږ شي چې دهغه په دفاع کې د فرانسې پوځ نزدې له مینځ نه تللی و. نښتې نزدې تر شل میل نه اوږدې لیکې کې کېدلې، چې ښي اړخ ته یې د فرانسې پوځ او د جنګ غټ بار د انګریز پوځ په غاړه و. د جولایي په اوله برتانویان اوږه په اوږه له خندقونونه ووتل او په دې ډول د جرمني ماشین ګنو ته ډېر ښه هدفونه شول. په هغه یوه ورځ کې دوه لکه برتانوي سرتېري ووژل شول. د متحدینو یو لړ حملو جرمنان شاتګ ته اړ کړل، په داسې حال کې چې دوی د شپږ لکه سرتېرو په تلفات سره د ختو یو سمندرګی وګاټه. دلته د لومړي ځل لپاره له ټانکونو نه کارواخیستلی شو؛ خو هغه په ختو کې ځای پرځای پاتې شول.

۶. يو ـبوټس U-boats: يا داوبتل او اوبو لاندې کښتۍ: په دواړو نړۍ والو جنګونو کې د جرمني اوبتلونو د برتانيې د سوداګرۍ کښتيوته غټ خطرونه پېښ کړل، چې د اتلانتيک دپاسه يې جنګي څيزونه وړل. د هغو د حملو پروړاندې په لومړي جنګ کې د نظامي ځواکونو په ټولګيو او په دوهم جنګ کې په رادار سره مقابله وشوه.

۷. د ديرش کلونو جنګ: هغه سياسي او مذهبي جنګ و، چې د ۱۶۱۸ د مۍ په ۲۳ مه پيل او ۱۶۴۸ د اکتوبر په ۲۴ مه پای ته ورسېد. دغه جنګ د استريا په پاچايۍ کې شروع شو او د جرمن سپېڅلې رومي امپراتورۍ ته سرايت وکړ. ډېر زر دنمارک، هسپانيه او سويډن هم پکې ښکېل شول. ددغه جنګ په پای کې د وستفالي تړون وشو، چې په هغه سره په جرمني کې زورواکې پاچايۍ هسکې شوې چې د هغو له امله کاتوليکي مذهبي – ضد حرکتونو ونه شو کولی پروټستاني غورځنګ له مينځ نه يوسي.

۸. د سيوال اعلاميه: له دوهم نړۍ وال جنګ نه وروسته دغه موضوع چې انسان په اوله درجه د طبيعت محصول دی، يا دروزنې په موقتي ډول د وروستي نظر په ګته شو. نازيانو د انسان د طبيعت په اړه بيالوجيکي ايډياګانې بې اعتباره کړې وې؛ خو څنګه چې له اوياومې ليسيزې نه وروسته په سوسيالوجۍ، تکاملي ساهپوهنې او د سلوک وراثت پوهنه کې څېړونکي په ډېره اندازه په دې فکروو، چې زمونږ ارثي عوامل (Genes) تر روزنې، پوهنې او کولتور نه ډېر زمونږ په سلوک باندې اثر کوي، نورو ساينس پوهانو له ساينسي او داسې هم له سياسي اړخ نه ددغه نظر پرخلاف اوازونه جک کړل او استدلال يې وکړ چې د جنګ بيالوجيکي شرح د جنګ د لغوه کولو لپاره کوښښونه بې اثره کوي.

د ۱۹۸۰ په لسيزه کې ډيوډ اډمز (David Adams) دولـزي پوهنتـون سيکالوجيست وروسته له هغه چې خپل پوهنتون کې يې يوه سروې وکړه، چې په هغې کې هم، د جنګ بيالوجيکي عوامل تر روزنې نه مهم وګڼل شو، پـه دې فکـر شو چې ددغه فکر پرخلاف عمومي مبارزه حتمي شوې ده. په ۱۹۸٦ کې ادمز لـه نولس نورو پوهانو سره، د ملګرو ملتونو تر څارنې لانـدې، د هسـپانيې پـه سـيوال کې غونډه وکړه. دده ملګري ساينس پوهان، د عصبي ساينس، دوراثـت سـاينس او نـورو سـاحو کـې متخصصـان وو. هلتـه دوی پـه اتفـاق سره دغـې فيصـلې تـه ورسېدل چې:

۱. د ساينس له نظر نه غلطه ده چې وويل شي چې مـونږ لـه خپلـو حيـواني تېرشويونه د جنګ کولو تمايل په ميراث خپل کړی دی.

۲. د ساينس له نظرنه غلطه ده چې وويل شي جنګ يا د تشدد بل هرډول سلوک زمونږ په انساني طبيعت کې ځای پرځای شوی دی.

۳. د ساينس له نظر نه غلطه ده چې وويل شي چې انسان د تکامل په بهير کې يرغليز سلوک تر هر بل ډول سلوک نه ډېر غوره شوی دی.

٤. د ساينس له نظر نه غلطه ده چې وويل شي چې انسانان ((تشدد ناک دماغ)) لري.

٥. د ساينس له نظر نه غلطه ده چې وويل شي چې د جنګ علت په ((انسياق Instinct)) يا بل کوم واحد محرک کې پروت دی.

دغه څرګندونه په پای کې وايي چې ((بيالوجي انسان په جنګ نه محکوموي او دا چې بشريت د بيالوجۍ بدليدنې فکر (Pessimism) له مريي توب نه ازادېدلی شي ...همدغه انساني نوع چې جنګ يې اختراع کړی، د سولې

راوستلو ظرفیت هم لري او ددغه کار مسولیت زموږ په غاړه دی.)) یونسکو د ملګروملتونو د پوهني، ساینسي او کولتوري موسسې د دغې څرګندونې ملاتړ وکړ او د امریکې د انټروپولوجیکي ټولنې، د امریکې د سیکالوجیکي موسسې په ګډون ډېرو نورو موسسو دهغې تایید وکړ. (جان هورګن، د جنګ پای، د مک سویني بوکس خپرونه، سانفرانسسکو،۲۰۱۲ مخ ۳۰)

۹. اجتماعي ډارونزم: دغه اصطلاح تر ۱۸۸۰ پورې په امریکا او اروپا کې عامه نه وه؛ خو له هغه نه وروسته او هغه هم نزدې په نه تغیرېدونکي ډول په سپکه په دې ډول ډېره یادېدله چې د ډارون د نظر له مخې طبیعي تکامل په دې مانا دی چې پیاوړې ټولنې، ناتوانې ټولنې له مینځ څخه وړي. اجتماعي ډارونزم له نازم یا جرمني فاشزم نه وروسته پوره بې اعتباره ښکاره شوه. سره له دې هم ځینو هغه په سوسیالوجیۍیا ټولنپوهنې کې بیا بیا یادوه؛ خو استعمالیې لانجمن و. نیو- اجتماعي ډارونزم یا نوی اجتماعي ډارونزم د نوي وراثت پوهنې پر بنسټ په دې فکر دی چې کوم هغه ډارونزم چې د ۱۸۹۰ لسیزې او ۱۹۳۰ لسیزې ترمینځ یادېده د نژادي لوړ توب یا د نسل د اصلاح په مفهوم نه و، چې د هغه له مخې د انسانانو یوه برخه تر نورو څخه له ارثي نظر څخه لوړه ده، یا چې دا مطلوبه او ممکنه ده چې له ډېرو ښو او پیاوړو میندو او پلرونو څخه په استثنایي ډول ښه او پیاوړی نسل پیدا شي.

په معقول او متوافق ډول ددغې اصطلاح د استعمال لپاره یوه ستونزه داده چې د طبیعي انتخاب بیالوجي او د ((د ډېرپیاوړي د ژوندي پاتې کېدلو)) نظر ته ژمن توب د سوسیالوجیکې طریقې یا دسیاسي دوکتورین لپاره یو متحد شکل یا فورم نه شته. یو اجتماعي ډارونزم پال به د لیسه فرد (عمل آزادي Faire-Laissez) مدافع کېدلی شي، لکه هسې چې په دولتي

سوشلزم معتقد کېدلی شي. ډېرو نومیالیو سوچوالو، چې د اجتماعي ډارونزم ټاپه پرې په آسانه لګول کېدله، ډارون د بیالوجۍ له موندنو او طریقونه دباندې په خپلواک ډول دلیلونه وړاندې او تثبیت کړل. د بېلګې په ډول سپنسر (Spencer) او سمنر (Sumner) له دغو کسانو څخه وو، په داسې حال کې چې یو یې د لامارک او وروستی یې د مالتوس ټینګ پلوی و. ددغو ټولو په نظر کې نیولو سره ښایي په یاد ولرل شي، چې د ((اجتماعي ډارونزم)) اصطلاح محض په تبلیغي او ایډیالوجیکي مفهوم سره او هغه هم د یوې لنډې مودې لپاره استعمال شوې ده.

۱۰. کانفوسیوس (Confucius) : د هغې فلسفې او ژوند لار ایستونکی و، چې له زېږدي ۱۲۴ نه یې تر ۱۹۰٦ پورې د چینایانو په ژوند اغیزه لرلې ده. ده له مخزېږدي ۵۵۱ څخه تر ۴۷۹ پورې په چین کې ژوند کړی و. د ده فلسفه وروسته په جاپان، کوریا او ویتنام کې هم خپره شوه. خو دهغه خپله لیکنه چې ناڅرګنده وه، د نورو له خوا تعبیر او تفسیر شوې ده. لیکنه یې د شخصي اخلاقي اصلاح په اړه ښکاري، خو دغه شخصي سمون له سیاسي نظرنه خاص اهمیت لري. دده په نظر هغه پوهه پوهه نه ده چې په عمل کې تطبیق نه شي او دا چې که پوهه له ارزښتونو سره تړاو ونه لري، بې ګټې وي او دا چې دځان تکامل هغه وخت ممکن وي، چې په ټولنیزو چارو کې ګډون وشي او یوازې منور کسان او پوهان ددولت هسکېدنه او نسکورېدنه شرح کولی او په اړه یې وړاندوینه کولی شي. د منور پوه مقصد باید خدمت وي او په خدمت کولو سره وي چې دی نه یوازې دخپل ځان استازیتوب کوي د پوهانو د ټولیز عقل استازیتوب هم کوي. د کانفوسیوس په نظر د انسان طبیعت د تکامل وړ دی او دا چې تکامل په دوه اړخیزتوب سره ممکن کېږي؛ عدالت به له عدالت سره

ځواب شي. اجتماعي کېدل له کورنۍ نه شروع کېږي. ښه تنظیمه شوې کورنۍ چې ماشوم پکې له مينې، عقلاني انضباط او دوه اړخیز مسولیت نه بهره من شوی وي، د ښه کولو خیر رسولو سرچینه وي. د هغه په نظر ډېره ستره ښېګڼه تقوا پالنه مینه ده، چې د ټولې کورنۍ اړیکې په غېږ کې نیسي. دغه فکر د چین په ټولنې کې د کمونیستي انقلاب سره سره ژورې ریښې غزولې دي. د ۱۹۸۰ په لسیزې کې ډېرو په یوې سروې کې ښکاره کړه، چې د تقوا پالې مینې نه شته توب دټولنې ستره بدي ده. ټولنه په لوړه درجه کورنۍ ده او کانفوسیوس ویل چې لویان یې وړوته هغومره غټ مسولیت لري لکه واړه یې چې د لویانو پروړاندې لري. د ده په نظر یوازې د دوه اړخیزو اړیکو په لړۍ سره حقونه او وظیفې رامینځ ته کېدلی شي.د هان کورنۍ (مخزېږدې۲۰۲- زېږدي ۲۲۰) لومړنیو واکمنود کانفوسیوس تعلمیات رسمي او دولتي وګرزول، خو دغه برې سطحی و. دسوي (sui له زېږدې ۵۸۱ نه تر ٦۱۸ پورې ) واکمنې کورنۍ هغه کسان په دولت کې په چارو ګمارل چې د کانفوسیوس د ښوونو په آزموینې کې بريالی کېدل.

۱۱. سوله پالنه (Pacifism): هغه عقیده ده چې وایي په انساني او بین‌المللي کشالو کې له زور او تشدد نه کار اخیستل ناسم کار دی. دغه فکر په بودیزم کانفوسیوسیزم او د لومړۍ دورې په عیسویت کې موجود و. دغه کلمه د شلمې پېړۍ په اوله کې وایستل شوه، په دغه مفهوم چې ټولې بین‌المللي کشالې باید په مینځګړتوب سره ه وارې شي، په داسې حال کې چې د مدني نافرمانۍ (Civil Disobedience) کلمه په نولسمې پېړۍ کې د یوه امریکایي لیکوال، هنري تورو (Henry Thoreau) له خوا ایستل شوې او هغه په دغسې نافرمانۍ کولو سره بندیشوی هم و. په لومړي نړۍ وال جنګ کې هم ځینو له

ګډون کولو نه ډډه وکړه او له امله یې هم بندي شول. د جنګ ضد غورځنګ لـه دوهم نړۍ وال جنګ او په خاص ډول د اټـومي بمونـو لـه استـعمال نـه وروسـته پیاوړی شو. مهاتماګاندي په هندوستان، برتراندرسل په انګلستان او مـارتن لـوتر کنګ په امریکې کې ددغه غورځنګ نومیالي مخکښان وو. خان غفارخان مشهور په پاچاخان په پښتونخوا کې ددغه غورځنګ یو لـوی محـرک و. اقبـال وزیـري د هغه په اړه یو کتاب خپور کړی، پهنامه د پاچان خـان انـدونو او مبـارزې تـه یـوه کتنه.

۱۲. <u>رنسانس د بېرته ژوندي کېدلو په مفهوم:</u> د رنسانس کلمه د لومړي ځل لپاره په ۱۵۵۰ کې واسه ري (Vasari) وایستله چې هنر او ادب د بیا احیا موضوع چې په څوارلسمې پېړۍ کې په ایټالیې کې پیل شوې وه، یاده کړې. په ۱۸۶۰ کې د سویس تاریخپوه جکوب برچاردت (Jacob Burchardt) په اثر په ایټالیا کې د رنسانس مدنیت په خپرېدلو سره عام شو. اوس دغه اصطلاح یوازې د هنر او ادب د بېرته احیا لپاره نه، بلکې د ذهنیت ټول هغه تغیر ته هم راجع کېږي چې په ساینس اقتصاد او داسې هم په فلسفې باندې یې اثر وکړ.

رنسانس د سوداګرۍ طبقې له هسکېدلو نه راولاړ شو چې د اقتصادي چارو په اړه یې چې فرد پالنې او انسان پالنې ته منتهي شو، د فریت سلوکونو ته انکشاف ورکړ. سوداګران د هنرونو حامیان شول او دغه انکشاف د دې لامل شو، چې په هغه کې نوي قضاوتونه او بصیرتونه رامینځ ته شي، چې هغه لکه پخوا په کلیسا متکي نه وو، له هغه وروسته هنر دېته ځانګړی شو، چې دهغه روزنه وکړي او انسان وپالي او لوړ کړي. د رنسانس هنروغوښتل چې انسانان خوښ کړي. دغسې آزادي د نوي ساینس او ټکنالوجۍ د هسکېدنې لامل شو.

رنسانس د غرب پوهانو له فلسفې، ساینس او د ریاضي له علم نه راووت چې هغوی دمخه د یونان له کولتورنه خپل کړی و، خو عربانو له یوناني هنر او ادبیاتو سره لږه علاقمندي ښوولې وه. ددې لپاره د بیزانس یا شرقي روم کولتور مطالعه شو. یوناني پوهان د قسطنطنیې له سقوط نه وروسته ایټالیې ته تښتېدلي وو. د دوی لیکنو دیوناني روحیې د پوره درک کولو لپاره ډګر برابر کړ، چې په پراخه اندازه ژباړل شوي او خپاره شوي وو او د چاپ په ماشینونو سره چې نوي رواج شوې وو، د عامه استفادې وړ ګرزېدلي وو. د لاتیني لیکوالو له آثارو څخه د روم د انسان پالنې (Humanism) او شکمنې څخه هم بصیرتونه ترلاسه شوي وو.

د رنسانس په لومړۍ دوره کې له اټکل ۱۴۰۰ نه ۱۵۰۰ پورې لویو هنرمندانو د اناټومي، هنري آثارو او نظرونو له مسایلو سره علاقمني ښووله او دراتلونکو دورو لپاره یې د انځورګرۍ بنسټونه کښېنول. د لوړ رنسانس دوره (اټکل ۱۵۰۰ تر ۱۵۲۷ ) یو سوچه، انډولیزاو کلاسیکه همغږي ترلاسه شوه او ځینو هنرمنو هغه تخنیکونه چې دمخه زده شویوو، د استادۍ درجې ته ورسول. په دغې لنډې دوربکې د میکالانجیلو (Michelangelo) لومړني اثار او د لیوناردو (Leonardo) ډېر اثار او د رافایل (Raphael) ټول رومي اثار تولید شول. دغه رنسانس دوخت په تېرېدلو سره په فرانسې، هسپانیې، جرمني او شمالي اروپا باندې اثر وکړ.

۱۳. کارل فان کلاز وتز(Carl von Clause witz): په نظر چې ((جنګ په نورو وسیلو سره دسیاست دوام دی)) جان هورګان، د جنګ پای په نامه اثر لیکوال وایي چې ددغه نظر له مخې ((....جنګیو عقلي اجتماعي کوښښ دی؛ (او) دولتونه او نورې موسسې د یوې وسیلې په توګه جنګونه کوي، د یوې موخې لپاره لکه مصونیت او شتمني.)) خو دعصري دورې توپاني جنګونو په ډاګه کړې،

چې جنګ څنګه په خپله دیوې موخې په شان کېږي، چې ددولتونو، مشرانو، یا خلکو له معقولو ګټو له پولو څخه پوره اوړي. د جنګ بېځایتوب د بشریت په مرګوني اختراع، هستوي وسلو کې نغښتي دي، چې نه یوازې د هغو جوړوونکي ترټي په مځکه باندې ژوند هم ترټي. تاریخپوه جان کیګن هم د انسان پوهه مارګریت – مید په شان جنګي وه کولتوري پېښه ګڼي. دی دا هم وایي چې جنګ په اصل کې د انسان له طبیعت خواري، یا مذهبي یا اتنیکي ویشونو څخه نه بلکې ((په خپله د جنګ له موسسې نه راولاړېږي.)) (جان هورګن، د جنګ پای، مک سویني بوکس، سانفرانسسکو،۲۰۱۲،۱۰۸) د کلاوتز د نظر له مخې جنګ د سیاست یوه برخه ده او چې سیاست د انساني ژوند یو حتمي جز وي جنګ هم د ملتونو په مینځ کې یوه تلپاتې حادثه او په خپل سرقوه کېږي او له کنترول نه وځي. یو غټ مثال یې لومړنی نړۍ وال جنګ و، چې واکمنو فکر کاوه هغه به ډېر لنډ وي خو هغه څلورکاله اوږد شو. د شوروي واکمن برژنیف هم په دې فکر و، چې د هغه افغان جنګ به په څو اونیو یا میاشتو کې ختم وي؛ خو هغه څه باندې نهه کاله ونیول.

۱٤. <u>د ملتونو لیګ</u>: دغه لیګ له لومړینړۍ وال جنګ نه وروسته جوړ شو په ۱۹۱۹ کې له هغه نه مقصد داو چې په مینځګړتوب سره د بین‌المللي کشالو په هوارولو سره سوله خوندي شي اوله جنګ نه مخنیوی وشي. یو شمېر سیاستوالو د امریکې ولسمشر دوډروولسن په ګډون په دې اړه کوښښونه کړي وو. دغه موضوع د ولسن په څوارلس ټکو یا وړاندیزونو کې هم نیول شوې وه. د لیګ بنسټیز قانون په ۲٦ مادو کې د پاریس د سولې په کنفرانس کې منل شوی او په هغو تړونونو کې ځای شوی و، چې خپل غړي یې مکلف ګڼل چې د یوه بل د خاورې او خپلواکۍ درناوی وکړي او پروړاندې یې دتېري دفع وکړي. کشالې

باید لیګ ته د منځګړیتوب لپاره وړاندې شي او که هغه په سولې سره په نهو میاشتو کې هوارې نه شوې، ملتونه له قوې نه کار اخیستلی شي.

د ژنیو ښار دلیګ منځۍ غوره شو. شورا یې له پنځلس غړو نه جوړه وه او په کال کې یې درې ځله او عمومي اسامبلۍ یې په کال کې یو ځل غونډه کوله. د شورا درې غړي- برتانیه شوروي اتحاد او فرانسه دایمي وو. فیصلې په اتفاق سره وې خو دلیګ تاریخ ښه ثابت نه شو. د امریکې کانګرس د وارسا تړون ونه منه. په دې ډول امریکې که څه هم د لیګ وړاندیز کړی و، غړی یې نه شو. څه وخت چې امریکا او لیګ په هټلر اعتراض وکړ، هغه دلیګ له دغې نیمګړتیا څخه ګټه پورته کړه؛ خو لیګ د قیمومیت په موضوع کې په بالقاناتو او جنوبي امریکې کې د ډیپلوماسۍ له لارې یو څه برې تر لاسه کړ؛ خو د لیګ اساسي نیمګړتیا دبین‌المللي وسله وال پوځ نه لرل وو، چې په خپل سر او تېري کوونکي حکومتونه اړ کولی وشي. یوازې تحریمات اغیزمن کېدلی نه شو او چې په ۱۹۳۶ کې په حبشستان باندې د ایټالیي د یرغل پروړاندې څه کولی ونه شو، اعتبار یې پوره له لاسه ورکړ. داسې هم لیګ ونه شو کولی د دوه هېوادونو د یرغل مخه ونیسي په ۱۹۳۱ کې په چین باندې د جاپان او په ۱۹۳۹ کې په فنلیند باندې د شوروي اتحاد. د هغه درې غړي تړینه ووتل: برازیل په ۱۹۲۶، جاپان په ۱۹۳۳ او ایتالیا په ۱۹۳۷ کې جرمن یې د ۱۹۲۶ او ۱۹۳۳ ترمینځ او شوروي اتحادیې یوازې د ۱۹۳۴ او ۱۹۴۶ تر مینځ غړي وو. د ۱۹۳۰ لسیزې په وروستیو کلونوکې لویو دولتونو د لیګ پروانه کوله. د دوهم نړۍ وال جنګ په بهیر کې لیګ غیر سیاسي وظیفې تر سره کولې او د ۱۹۴۶ په اپرېل کې یې خپل مسوولیتونه د ملګرو ملتونو موسسې ته وسپارلې.

۱۵. د کیلاګ ــبریند تړون: دغه تړون په رسمي ډول د جنګ د رد تړون دی، چې په ۱۹۲۷ کې د فرانسې دباندنیو چارو وزیر بریند د امریکې دباندنیو چارو وزیر کیلاګ ته وړاندیز وکړ، چې امریکا او فرانسه باید د جنګ پر ضد یو رسمي مثال شي او په سولې سره د کشالو د هوارولو لپاره اراده ښکاره کړي. د کیلاګ په کوښښ سره د ۱۹۲۸ کل د اګست په ۲۸ مه د بلجیم، چکوسلواکیې، فرانسې، جرمني، ایټالیې، جاپان، پولیند او امریکې استازو په پاریس کې غونډه وکړه او دغه پکټ یې لاسلیک کړ. وروسته شپږپنځوس نورو هېوادونو د شوروي اتحاد په ګډون هم دهغه ملاتړ وکړ؛ خو دغه پکټ د متجاوزانو پر وړاندې کوم تجویز نه لاره او په ۱۹۳۰ لسیزې کې بین‌المللي کړکیچ هغه پوره شنډ کړ.

۱۶. د ملګرو ملتونو دغه موسسه: د ۱۹۴۵ کل د اپرېل ۱۵ مه د جون تر ۲۶ پورې په سانفرانسسکو کې دهغو پنځوس هېوادونو استازو جوړه کړه، چې په دوهم نړۍ وال جنګ کې د جرمني اومتحدانو پر وړاندې جنګېدلي وو. دغه اصطلاح د لومړني ځل لپاره متحدو ځواکونو د ۱۹۴۲ کال په جنورۍ کې ایستلې او ویلي یې وو، چې له دوی نه هیڅ یو باید په ځانګړي ډول دمحور له ځواکونو سره سوله ونه کړي. په ۱۹۴۳کې د چین، برتانیې، امریکې او شوروي اتحاد استازو په دې اړه د یوې بین‌المللي موسسې فکر وړاندې کړ. په دې اړه بل کال ۱۹۴۴ واشنګتن ته په نزدې یوه ښار ګوټي کې او په ۱۹۴۵ کې په یالتا کې د برتانیې امریکې متحدو دولتونو او شوروي اتحاد سرانو پرې بحث وکړ، تر څو د همدغه کل په جون کې په سانفرانسسکو کې د ملګرو ملتونو موسسې په نامه دغه موسسه جوړه شوه.

اوس دغه موسسه ۱۹۴ غړي لري؛ یو منشور لري، په دغه مقصد چې بي المللي سوله او کراري خوندي کړي، اقتصادي، اجتماعي او سیاسي کشالې د بي

المللي همکارۍ له لارې هوارې کړي او د بشري حقونو درناوی تشویق کړي. ددغې موسسې منځی د نیویارک ښار دی او په رسمي ډول د سره برابرو خپلواکو دولتونو غړیتوب لري. لوی اداري آمر یې عمومي منشي یا سکرتر جنرال دی. د سولې او ثبات ساتنه د هغې د امنیت د شورا مسوولیت دی، چې له پنځو دایمي غړو برتانیه، فرانسه، چین، امریکا او شوروي اتحاد (اوس روسیه) او پنځلس موقتي غړو نه جوړه ده. عمومي اسامبله یې د ټولو غړو په ګډون په کشالو بحث کویاو غړي یې سره برابر حقونه لري. دغه اسامبله پرېکړې کوي او د عمومي منشي راپورونه اوري. تر اوسه یې یو لړ بین‌المللي کشالې هوارې کړې دي، چې پر افغانستان باندې د شوروي اتحاد د یرغل نه راپیدا کشالې هوارول یې وروستی مثال دی.

ملګري ملتونه تر لیګ نه ډېر اغیزناک ثابت شوي دي. غټ دلیل یې دامنیتي شورا لرل دي، چې د سولې د خوندي کولو لپاره او داسې هم د تېري کوونکي هېواد پر وړاندې وسله وال پوځ ورکوي. غړو هېوادونو یې دغه ژمنتوب منلی دی.

۱۷. ډي– ډی D- Day: د هغې بریالۍ نظامي عملیې شفري نوم دی، چې د ۱۹۴۴ کال د جون په ٦ مه د اوورلارډ اپریشن (Operation Overlord) په نامه د نورماندي په ساحل کې پرې پیل وشو. په دوهم نړۍ وال جنګ کې دغه عملیات د سمندري حملو تر ټولو ستره حمله وه. د کانادا او برتانیې درې فرقې سرتېري او د امریکې دوه فرقې ددغه ساحل په اوږدو کې په بېلو بېلو ځایونو کې پیاده شوې. د اوماها په نامه ۲۴ میل اوږده او ۴ میل ژور ساحل کې له یوه هیبتناک جنګ نه وروسته، چې لس زره سرتېري پکې ووژل شول، د شپې پر مهال دغه قوه پرځای شوه، چې هغه اول د جرمني له کنترول نه د فرانسې د

آزادۍ او ورپسې په اروپا کې د جرمني د ماتېدو لپاره مقدمه شوه اوس غټ او غوڅ برى هر چيرې په دغه نامه يادېږي.

۱۸. سامورای: دغه اصطلاح د فيوډالي جاپان جنګي طبقې لپاره په کارېدله، چې په نهمې اولسمې پېړۍ کې د جاپان په ولايتونو کې هسکه شوې وه. (په آسياکې يوازې جاپاني فيوډاليزم له اروپايي فيوډاليزم سره سرخوري.) د سامورای غړو په معمولي ډول په محلي ارستوکراسۍ پورې اړه لرله. د جاپان د ټوکوګاوا (Tokugawa) په دوره کې (۱۸٦۷-۱٦۰۳)د سامورای طبقې د يوي لړۍ يا مرتبه دارۍ بڼه وموندله له پاس نه ښکته له ډېرو وړو څانګو سره په دغه وخت کې دغه طبقه ميراثي شوه او په سر کې يې شوګن (Shogun) ديميوس (Daimyos) او کاروس (Karos) يا دمجلس لويان وو. په دغه حال کې هم د جاپان پاچا پرځای و او شوګنانو ورته اطاعت کاوه. د سامورای طبقه له اولسمې پېړۍ نه وروسته ورو ورو نظر دېته چې نظاميان وي، پوهان شول، خو دوی خپلې جنګي ضابطې او بادارانو يا لارډانو ته وفا له لاسه ورنکړه. په ۱۸٦۸ کې دغه طبقه لغوه شوه او د ميجي يا منوري کورنۍ واکمنه شوه؛ خو سامورای لا هم په حکومت، پوليس او پوځ کې نفوذ لاره. د ميجي يا منوري کورنۍ په واکمن کېدلو سره جاپان په نوي کېدلو شروع وکړه: نظام يې د اساسي قانون پربنسټ اصلاح کړ، پوهنه يې عامه کړه او اقتصادېې قوي کړ. ددغې کورنۍ په واکمن کېدلو سره هغه وخت په افغانستان کې امير شېر علي خان په خپلې دوهمې واکمنۍ‌کې د نظام په يو ډول عصري کولو پيل وکړ؛ خو هغه د هند برتانوي حکومت په خپل دوهمي يرغل سره له مينځ نه يووړ.

۱۹. سوړ جنګ: سوړ جنګ يا د ۱۹۴٦ او ۱۹۸۹ کلونو تر مينځ د بين‌المللي کړکيچ دوره. شوروي اتحاد، برتانيه او د امريکې متحد دولتونه له ۱۹۴۱ نه تر

۱۹۴۵ پورې سره ملګري وو؛ خو دوی پخوا له دې چې جرمني وويشل شي د جرمني او ختيځې اروپا د راتلونکي په اړه سره مخالف شوي وو، په يالتا او پوتسدام کې د لويو هېوادونو د سرانو په غونډو سره ځينې توافقونه تر لاسه شوي وو؛ خو څنګه چې کمونستي حکومتونو په ختيځې اروپا کې قدرتونه غصب کړي وو او يونان او ترکيه تر خطر لاندې شول، لوېديځ ځواکونه وويرېدل. له ۱۹۴٦ نه وروسته د ساړه جنګ اصطلاح، د اټومي تاوده جنګ پر خلاف، په عامه رسنيو کې ډېره يادېدله. امريکا اول داسې ګڼله چې د جنګ په ختم سره اروپا ته د هغې ژمنتوب هم ختم شوی دی؛ خو بيايې له ۱۹۴۷ نه وروسته عالمي رول په غاړه واخيست او د ترومن دکتورين او د مارشال پلان يې په کار واچوه، چې اقتصادونه پراخ او وهڅوي او چې چيرته اړين شي پوځي مرسته دازادو ولسونو په ملاتړ وکړي. په کال ۱۹۴۹ کې يې د شمالي اتلانتيک نظامي اتحاديه يا ناټو د شوروي اتحاد د احتمالي يرغل پروړاندې جوړه کړه. د هغې پروړاندې کمونستي بلاک په ۱۹۴۹ کې د کميکان (Comecon) يا د دوه اړخيزې اقتصادي مرستې په نامه موسسه جوړه کړه او چې لوېديځ جرمني په ۱۹۵۵ کې په ناټو کې ګډون وکړ، کمونستي بلاک د وارسا په نامه نظامي پکټ رامينځ ته کړ. په راتلونکو لسيزو کې سوړ جنګ په ټولې نړۍ کې خپور شو؛ خو دنړۍ په نورو کمونستي ګوندونو باندې د شوروي اتحاد کنترول يقيني نه و. امريکې د شوروي اتحاد د محاط کولو لپاره په ارام سمندر، سهيل- ختيځې آسيا او منځنۍ ختيځ کې هم يو لړ نظامي پکتونه جوړ کړل. په نړۍ کې يو لړ کشالې هم پيدا شوې، چې ټولې يې د ساړه جنګ برخه شمېرل کېدلې، لکه په کوريا، هندوچين، هنګري او د کيوبا د توغنديو بحران او د ويتنام جنګ. په همدغه مهال کې د ديتانت ياد کړ کيچ د لږولو لپاره هم کوښښونه وشول، لکه د راپاسکي (Rapacki) پلان په ۱۹۵۵

کې او وروسته د شوروي اتحاد د کمونستي ګوند شلم کانګرس ته د نکیتا خروشیحف وینا. د ۱۹۵۰ لسیزې نه وروسته د هستوي وسلو مسابقه تر یوه حده په ۱۹٦۹- ۱۹۷۹ کلونو کې د سالت (Salt) یا دستراتیجیکي وسلو د تحدید په تړونونو په خبرو سره یو څه نرمه شوه. په ۱۹۷۵ کې د هلسنکي په کنفرانس سره د سولې هیله را وټوکېده؛ خو په ۱۹۷۹ کې په افغانستان باندې د شوروي اتحاد په وسله وال یرغل سره کړکیچ بېرته شدید شو. له هغه وروسته و، چې په اروپا کې یو شمېر هستوي توغندي ځای پرځای شول. د ۱۹۸۰ په لومړیو کې د امریکې د کروز توغندیو ځای پر ځای کولو او د ستراتیجیکې دفاع نوښت، چې د ستورو جنګ په نامه یادېده، کړکیچ نور هم ډېر کړ؛ خوله ۱۹۸۵ نه وروسته په اروپا کې د جنګ تهدید نه حس کیده او په ۱۹۸۸ کې د منځني واټن هستوي توعندیو د لاسلیک له مینځ نه وړلو توافق لیک د امریکې ولسمشر ریګن او د شوروي اتحاد مشر ګوریا چوف ترمینځ لاسلیک شو. د ۱۹۸۹ کال په بهیر کې لوېدیځ هېوادونه په دې فکر شول چې شوروي اتحاد د کړکیچ د کمولو په مقصد خپلو وړاندیزنو ته رښتین دی، د بدلون غورځنګ مخ په پیاوړتوب شو. د همدغې کال په فبرورۍ کې شوروي اتحاد خپل پوځ له افغانستان څخه وایست او په ناکرارو هېوادونو لکه انګولا او نکاراګوا کې ارامي هم شوني شوه. په ډسمبر کې ولسمشر بوش او ګورباچوف په مالتا کې سره غونډه وکړه اوسوړ جنګ یې په رسمي ډول ختم اعلام کړ. تر دغه وخت د وارسا د پکټ کمونستي رجیمونه یوپه بل پسې نسکورېدل او د برلین دېوال هم نړول شوی و.

# جنګ او د لبرل وجدان وده

1 . د تنور دوره: د اتلسمې پېړۍ په اروپا کې هغه پراخ فلسفي غورځنګونه چې د انسان عقل یې مهم ګاڼه او عقل – ضد سیاسي او مذهبي تمرینونه یې ردول. دغه حرکت په فرانسې کې په خاص ډول مهم و. نور شکلونه یې په جرمني، اسکاټ لینډ او امریکې کې ښکاره شول. په نورې اروپا کې هم داسې کسان وو، چې ددغه حرکت غړي ومنل شول، که څه هم د دوی ترمینځ توپیرونه وو.

تنور دځان ویښ توب بین‌المللي او په خاص ډول اروپایي غورځنګ و. اروپا زیاتره د یوه ځانګړي هېواد په څېر ګڼل کېده، دغسې هېواد چې په بېلو ولایتونو ویشل شوې؛ خو له ګډ فکري طرز،ګډو ارزښتونو او ګډې ژبې فرانسوۍ سره چې د منځنیو پېړیو د لاتیني ژبې ځای یې نیولی و. د تنور دورې په سوچوالو کې په پرمختګ باندې عقیده عامه وه؛ خو پرمختګ داسې نه ګڼل کېده چې په خپله به واقعي شي. دوی پوهېدل چې د هغه لپاره باید کاروشي. د مدنیت (Civilization) کلمه د هغې له عصري اهمیت او ارزښتونو سره ممکن د لومړي ځل لپاره د میرابو (Mirabeau) له خوا په ۱۷۵۷ کې په کار اچول شوي وي. میرابو د فرانسې انقلاب لومړنی انقلابي شخص و. د تنور دورې د فکرونو سرچینې د اولسمې پېړۍ د متفکرانو په اثرونو کې موندل کېدلی شي، لکه تاماس هابس، ایمانویل کانت، جان لاک او نیوټن. دوی د تنور دورې له وروستیو سوچ والو او پلویانو نه ډېر نوښتګروو او دا دوی وو، چې هغو ته یې په علم پوهنې، سیکالوجۍ، طبیعي ساینس او ټولنپوهنې کې اساسي بصیرتونه او ګټې وړاندې کړې. د انګلستان له ۱۶۸۸ انقلاب نه وروسته چې د سیاسي بدلون لپاره

يې نوی سرمشق تهیه کړ، دهغه د لبرل پلویانو فکرونو په اروپا کې د اتلسمې پېړۍ داولې نیمایي لپاره د مباحثو یوه نوې دوره پرانیستله. د اتلسمې پېړۍ په مینځ کې د سوچونو او اندونو انفلاق پېښ شو، په تېره د مانتسکیو په روح القوانیناو د دایرة المعارف لومړي ټوک په خپرېدلو او د نورو لیکوالو په اثرونو سره.

د فرانسې د تنور سوچ والان په ډېرو ساحو کې په یوه نظر نه وو، خوټولو یو ځانګړی نظام یا منبع د علم بنسټ په توګه رد کړ. د هغه پر ځای دوی عقلي اصالت یا عقل پالنه (Rationalism) چې دمخه ورته انکشاف ورکړل شوی، ومانه چې که هغه د تعلیل (Deduction) یا تجربې اصل (Empiricism) په بڼه وي. ددې مانا په اتومات ډول د مذهب نفي نه وه او په دې اړه ډول ډول موقفونه غوره شول، لکه اتییزم (Atheism)، ډییرم (Deism)، د پروټسټانزم ډول ډول شکلونه او کاتولیکیت (Catholicism)؛ خو په عمل کې هغه د کلیسا او دهغه د مقررو ردو، د علم د سرچینې په توګه. د هغو پر ځای ومنل شوه چې فرد د خپل عقل نه په استفادې سره پوهې او واقعیت ته رسېدلی شي. ددغه نظر ډېر ښه مثال ددیدرو (Didero) دایرة المعارف و، چې پکې ویل شوي وو، چې ټول موجود علم په آسانه او د عامې پوهې په شکل وړاندې کېږي. له دغه چلند څخه په هرې ځانګې کې کار اخیستل کېده، نه یوازې د انسان د طبیعت، مذهب او سیاست په اړه بلکې په طبیعي ساینسونو، قانون او هنرونو کې او حتی په عملي ساحو کې هم. فلسفه په تېره میتافزیکي څانګه یې مخ په ځوړې شوه. دتنور دورې فکرونو د فرانسې او د امریکې په انقلابونو اثر درلود.

2 . <u>فلاسوفان (philosophes)</u>: د فرانسې انقلاب نه د مخه فرانسوي سوچوالان په دغه نامه یاد شوي دي لکه مانتسکیو، ولټیر، روسو، کاندورسي او

ديدرو. د دوی د فکرونو جوهر د انسان دعقلي قوت مهم ګڼل وو، چې د هغه له مخې غير عقلي امتيازونه او د ناوړه دودونو او استفادې تر انتقاد لاندې ونيولی شوې. د محافظه کارو يا ساتنپالو په فکر د فرانسې انقلاب د همدغو فلاسوفانو د آثارو تاثيرو. د فلاسوفان نوم همدغو سوچوالوته راجع کېږي، چې دا د فيلسوفانو له عمومي نوم څخه جلا دي.

3 . د وستفالي تړون: وستفاليه د پخواني پروس (Prussia) يو ايالت و، چې له ۱۹۴۵ نه وروسته د جرمني برخه شوه. هلته په ۱٦۴۸ کې د فرانسې، سويډن او دروم سپېڅلې امپراتورۍ تر مينځ د دېرش کلونو جنګ نه وروسته يو تړون وشو، چې د وستفالي سولې په نامه يادېږي.

4 . فزيوکراتان: په اتلسمې پېړۍ کې د فرانسې اقتصادپوهان –ډو پانټ دي نيمورس (Du Pont de Nemours) تورګو، کيوزني او ميرابو وو. دوی د هغه وخت د عمومي فکر له مخې د طبيعت سخاوت او دانسان ښه توب د هغه په طبيعي حالت کې ليده. فکر يې کاوه چې حکومت دې له طبيعت سره توافق وکړي، په دې شرط چې خلک ديوه بل په آزادۍ کې مداخله ونه کړي او افراد په خپل حال پرېږدي. لېونيان، مجرمان او انحصارچيان بايد له مينځ نه يووړل شي؛ خو له بلې خوا ليسه فرد يا د عمل آزادي په اقتصادي چارو کې بايد غلبه ولري. له دغه ذهنيت څخه د عدالت او اقتصاد ددليلونو پر بنسټ د ملتونو ترمينځ د آزادې سوداګرۍ فکر پيدا شو. ددغې عقيدې له مخې چې اقتصادي رقابت به خلک اړ کړي، چې د ټولو ګټې لپاره دخپل کار په قيمت کې سپما وکړي. ادم سميت د فزيوکراتانو له فکرونونه متاثر شو او دهغو ښوونوته يې انکشاف ورکړ.

5 . مرکنټلزم: هغه سياست چې انګلستان، هالينډ او نورو اروپايي هېوادونو په شپاړسمې او اولسمې پېړۍ کې پر مخ بېوه. دغه وخت دغو ملتونو

له داخلي زراعت نه اخوا د خپلو اقتصادونو د سوداګرۍ برخې پراخې کړي او په سوداګرۍ باندې يې لنګر واچوه. ددغې سوداګر نه يو مقصد داو چې له باندې نه د قيمتي فلزونو او اومو موادو ورود خوندي کړي او پر وړاندې يې خپل مصنوعات صادر کړي. دغه سياست له يرغليز نيشنلزم او په خارج کې د سيمو له لاندې کولو سره يو ځای پرمخ بېول کېده، چې له مخې يې مستعمرې بايد استعماري هېوادونو ته خام مواد تهيه کړي او هغوی د دوی مصنوعات په بيه واخلي. نورو هېوادونو ته د صادرات مخنيوی کېده. ددغه سياست پروړاندې لومړی چلينج په ۱۷۲۲ کې دوال پول له خوا په دې ډول وړاندې شو چې د ډېرو مالونو په صادرولو او په خاص ډول د نويو مالونو په واردولو باندې ګمرکي ماليات لغوه شول. وروسته په نولسمې پېړۍ کې آزادې سوداګرۍ دغه سياست شنه کړ.



# د کلاشنکوف ټوپکونه او د تومهاک راکټونه

1 . د تاریخ ختم: د پروفیسور مایکل هاورډ مطلب د هارورډ پوهنتون پروفیسور فرانسس فوکو یاما او د هغه یو اثر دی، په نامه د تاریخ ختم؟ ددغه اثر اساسي ټکي دادي چې د کمونزم سقوط او د ساړه جنګ پای د بشریت د ایډیالوجیکي تکامل پای دی او مونږ دغسې پړاو ته رسېدلي یو، چې لبرل دموکراسي او پانګه والي تر ټولو ښه سیستم دی. د هغه په الفاظو:

((هغه څه چې مونږېې وینو ...په دغه ډول د تاریخ پای دی: د بشریت د ایډیالوجیکي تکامل ختم او دانسان د وروستي حکومت شکل د لوېدیځې دموکراسۍ عالمي کېدل...د لبرلزم برى په اول کې د ایډیاګانو یا شعور په قلمرو کې پېښ شوى او په مادي او واقعي نړۍ کې لا تکمیل نه دی؛ خو قوي دلیلونه لیدل کېږي چې فکر وشي چې دا هغه ایډیال دی، چې په اوږده موده کې په مادي نړۍ واکمني وکړي.))

(د قول نقل: دموکراسي: خورا ډېر ښه د خورا ډېرو لپاره، تنظیم او پیلامه د ماریان زهاله، د امریکا پوهنتون خپرونه، نیویارک، ۲۰۰۳، ۲).

د فوکو یاما نظر او اثر په امریکا کې د هغه وخت په تاریخي کړیو کې ډېر یادیده او داسې ویل کېدل چې دغه پروفیسر د تاریخي پېښو د پوهېدلو لپاره یوه کلي ایستلې ده؛ خو د تاریخ یو کرښه ییز فکر کوم نوی څیز نه و. تاریخپوه کیت ونډشتل (Keith Windschuttle) په دې اړه اوږد غږېدلی په دې ډول چې د تجربې طریقې د نتایجو یوه مهمه یې داده چې ((...تاریخ ټاکل کېدلی نه شي. تاریخي پروسه په حتمي ډول په یوې خوا یا دیوه مقصد په لور نه

درومي،هغه کومه پټه طرحهیا پروګرام نه لري، چې کشف کولوته انتظار وباسي. د تاریخپوه کار دا نه دی چې د کومې تیورۍ لپاره څېړنه وکړي، چې ټول به وښیي یا کومه موخه ییزه څېړنه وکړي، چې د څیزونو مقصد شرح کړي. د هغه کار دادی چې د تېر مهال پېښې په خپله د هغو له مخې بیا ورغوي؛ نو هغه څه چې په تاریخ کې پېښېږي، هغه هیڅکله بې هدفه نه وي، خو داسې هم د کومې ژورې طرحې له مخې نه وي. نو تر هغو چې انسانان ژوندي دي د تاریخ دختم په اړه غږېدل به بې مفهومه وي.))

په دې ډول دی هم، د ډېرو نورو تاریخپوهانو په شان، د تاریخ یوه کرښه ییز فکر ردوي او وایي چې ((همدا چې مونږ ومنو چې د تاریخ فلسفه په خپله د انساني چارو پوهېدلو لپاره ناجایزه طریقه ده، که هغه د هیګل د لبرلي یا د مارکس د سوشلزم په بڼه وي، د تاریخ د ختم تیسس سقوط کوي.)) ( د تاریخ وژنه، اراده خپرونه، نیویارک، ۱۹۹۷ مخونه ۱۷۳، ۱۷۷۰).

لکه چې وویل شول تر څو چې انسان وي پېښې به وي، خو څنګه چې پېښې دیوه ځانګړي عامل مولود نه وي، نه شیکېدلی دهغو رښتینتوب د یوې ټاکلې فکري لیکې له مخې درک شي، چې که هغه مذهبي، نژادي، لاشعوري، جنسي، طبقاتي یا دغسې نور وي.

2 . انګلوساکسن: د لوی جرمن قومونو هغه غړي چې انګلانو یا انګریزانو (Angles)، ساکسانو (Saxons) او جوټانو (Jutes) ته منسوب وو. د هغه ملت غړي چې له دغو ولسونو څخه راوتلي وو، چې د نورمانانو تر فتح پورې انګلستانیې تر لاس لاندې وو. نورمانانو د پاچا ویلیم په سروالي انګلستان په ۱۰٦٦ کې د هیستنګیز (Hastings) په جنګ کې ونیوه.

3 . رومانتیکي غورځنګ: په هنر، موسیقي او ادب کې هغه غورځنګ چې په اروپا کې د اتلسمې پېړۍ په وروستي کې وټوکېده او غټه خاصه یې له طبیعت سره پیاوړې علاقمندي وه. دغه حرکت د نوي کلاسیکي فلسفي (Neoclassicism) پلو توب پروړاندې سرکشي وه، چې قوانینو، شکلونو او عنغنو ته یې لاره. رومانتسزم احساسات او حواس ستایل او فردیت، غنایي او غزلي حال او طبیعت نه اخوا ته په څرګند غوره توب قایل و.

یادونه:د یادښتونو د متن ځینې منابع په خپلو ځایونو کې ښودل شوې دي؛ خو دمتن زیاتره برخه د لاندې منابعو پر بنسټ تهیه شوې ده. ځای ځای ما خپلې لیکنې هم پکې ځای کړې دي.


۱. ایین مک لین او السترمک لین، د سیاست پوهنې لنډ قاموس، د اکسفورډ پوهنتون خپرونه، اکسفورډ، نیویارک، دوهم چاپ،۲۰۰۳

۲. کرس کوک، دتاریخي اصطلاحاتو قاموس،ګرامرسي بوکس خپرونه، نیویارک، دوهم چاپ، ۱۹۸۹.

۳. پیټر ټید، د شلمې پېړۍ د تاریخ قاموس، ۱۹۱۴ – ۱۹۹۰، اکسفورډ پوهنتون خپرونه، نیویارک، ۱۹۹۲.

٤. راجر سکرټن، د سیاسي فکرونو قاموس، د هارپر او رو خپرونه، کیمبرج ۱۹۸۲،.


((پای))

